

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# پښتو

## اتم ټولګی

(د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو ژبې او ادبیاتو څانګې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډېټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډېټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اتم

**د متن ژبه:** پښتو (د دري ژبو لپاره)

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراگانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږگوني بنسټیز عناصر بلل کېږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وگړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست





# حمد



الله ﷻ د ټولې نړۍ خالق او څښتن دی. شریک او مرستندوی نه لري. زیان او زوال نه لري. تل تر تله دی او وي به. الله ﷻ خپل ټول مخلوقات پالي او روزي يې، ټول مخلوقات د الله ﷻ لویي بیانوي. ملایکې، انسانان، پېریان، حیوانات، مرغان، خزنده‌گان، ونې او بوټې ټول الله ﷻ ستايي. حمد د الله ﷻ ټولې ستاینې رانغاړي.

- د حمد او نعت ترمنځ څه توپیر شته؟
- د حمد موضوع د څه په اړه وي؟

گوره هسې کردګار دی رب زما
چې صاحب د کل اختیار دی رب زما

همګي بزرګواران چې څوك يې وايي
تر همه وو بزرګوار دی رب زما

نه يې هیڅ حاجت په چا پورې موقوف دی
نه د هېچا منت بار دی رب زما

څه ماڼۍ چې د دنیا او د عقبٰی دي
د همه وارو معمار دی رب زما

شریك نه لري په خپله بادشاهۍ کې
بې شریکه شهریار دی رب زما

څه حاجت دی چې وېل خواته يې غواړم
په خپل کور کې همکنار دی رب زما

هېڅ تغییر او تبدیل نه لري رحمانه!
تل تر تله برقـــرار دی رب زمـا

**د متن لنډيز:**

الله ﷻ خالق او رازق دی. ټول مخلوقات او کاینات يې پیدا کړي دي. ټولو خوړونکو ته خواړه ورکوي. له هر زیان او نقصان څخه پاك دی. بې انتها واك او ځواك لري. شریك او مرستندوی نه لري او اړتیا هم ورته نه لري. ټول مخلوقات الله ﷻ ته اړ دي، خو هغه هېچا ته اړ نه دی. الله ﷻ هر ځای حاضر او لیدونکی دی. الله ﷻ تل و او تل به وي.

**د شاعر پېژندګلوي:**

عبدالرحمان بابا د پښتو ادبياتو دمنځنۍ دورې ډېر مشهور شاعر دی. هغه په ۱۰٤۲هجري قمري کال د پېښور په بهادرکلي کې زېږېدلی دی. په ۱۱۲۸هجري قمري کې مړ دی. مزار يې د پېښور د هزار خانۍ په هديره کې دی. د رحمان بابا شعرونه له پند او نصيحت څخه ډک دي. شعري ژبه يې ډېره خوږه او روانه ده. له همدې امله په ولس کې تر ټولو زيات مشهور دی. د شعر دېوان يې په لس ګونو ځله په افغانستان، پښتونخوا او هندکې چاپ شوی دی.


عبدالرحمن بابا

## فعاليتونه

۱- زده کوونکي دې حمد وروسته له ښوونکي څخه په لوړ اواز ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

۲- زده کوونکي دې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي:

- د مخلوقاتو خالق څوک دی؟
- د حمد موضوع څه وي؟
- رحمان بابا څه ډول شاعر دی؟
- رحمان بابا چېرته ژوند کاوه او چېرته يې قبر دی؟

۳- په حمد کې درې عام نومونه پيدا او په جملو کې يې استعمال کړئ.

٤- د لومړي کتار د لغتونو معناوې په دويم کتار کې پيدا او په جملو کې يې استعمال کړئ:

| | |
|---|---|
| زوال | استوګنځی |
| مکان | جوړوونکی، ختګر |
| نقصان | ځوړتيا |
| معمار | تاوان |

٥- ښوونکی دې د لوست لنډيز د املا په توګه زده کوونکو ته ووايي او بيا دې د زده کوونکو د ليکنې نيمګړتياوې سمې کړي.




د دې حمد د منځپانګې په اړه اووه کرښې مطلب وليکئ.



# خیر البشر



حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ پیغمبر او د الله ﷻ بنده دی. هغه تر ټولو مخلوقاتو غوره دی. هغه د الله ﷻ له لوري د ټول عالم لپاره رحمت رالېږل شوی دی. د هغه هره وینا زموږ د ژوند لارښونه ده. هر عمل يې زموږ د بریالیتوب لپاره دی. ټول مسلمانان لا څه چې نامسلمانان هم هغه ستايي. په دې لوست کې د نامتو فرانسوي لیکوال ((هوګو)) یوه لیکنه لولو. هوګو دا لیکنه د محمد ﷺ د ژوندانه د وروستیو شیبو په اړه کړې ده.

د حضرت محمد ﷺ د ژوندانه د وروستیو شیبو په اړه مو څه اورېدلي دي؟

نامسلمانو ولې د حضرت محمد ﷺ ستاینه کړې ده؟

حضرت محمد د خدایﷻ بنده او د هغه پیغمبر و چې د بشریت د لارښوونې لپاره رالیږل شوی و او ټول عمر یې انسانانو ته د سمې لارې د خپلولو تبلیغ وکړ. حضرت محمدﷺ به تل په فکر کې ډوب و، په هیڅ به یې پروا نه اچوله چې په لاره به روان و، له هرې خوا به پرې سلامونه ویل کېده. ده به هم هر چاته په مهربانۍ ځواب وایه. په ډېره کې یې شل وېښتان سپین نه لیدل کېده؛ خو زهیرتیا یې ورځ په ورځ زیاتېده. کله به چې اوښانو اوبه څښلې، دی به ورته ودرېد او هغه ورځې به یې په زړه راګرځېدې چې ده به د خپل تره اوښان څرول. هر وخت به د خدایﷻ په درګاه کې په راز او نیاز مشغول و. خوراک، څښاک یې ډېر لږ و، ډېر ځله به یې په نس پورې تیږې تړلې وې. په خپل لاس به یې خپلې مېږې لوشلې چې جامې به یې خیرې شوې؛ په ځمکه به کښېناست او خپلې جامې به یې ګنډلې. د ځوانۍ قوت یې نه و پاتې، ډېرو روژو دده بدن کمزوری کړی و. د درې شپېتو کالو و چې ناڅاپه پرې تبه راغله، هغه قران چې د خدایﷻ له لوري پرې نازل شوی و، ټول یې ولوست. د اسلام توغ یې سعید ته په لاس کې ورکړ او ورته ویې ویل: دا زما د ژوند وروستۍ ورځ ده. ته په دې پوه شه چې بې له یوه خدایه بل خدایﷻ نشته. ته د هغه په لاره کې جهاد وکړه.
په حضرت علي (رض) یې تکیه کړې وه. په دغې ورځې هم لکه: د تل په څېر د لمانځه لپاره جومات ته لاړ. مؤمنان یې تر شا روان وو، مخې ته یې د اسلام سپېڅلی توغ رپېده.
چې جومات ته ورسېد، رنګ یې الوتی و خلکو ته یې وویل:
اوس زما وروستی ساعت رارسېدلی دی، د آسمان پرښتې زما په اړه مجلس لري. غوږ کېږدئ او واورئ! که ما تاسې کوم یوه ته کله کومه بده خبره کړې وي، هغه دې پاڅېږي، پخوا له دې نه چې زه له دې دنیا نه لاړشم، ماته دې یې بېرته راوګرځوي. هماغه څه دې راته بېرته ووایي. که مې څوک وهلي وي ومې دې وهي. که مې له چا نه څه اخیستي وي، بېرته دې یې رانه واخلي. له دې سره یې هغه امسا حاضرینو ته ور وړاندې کړه چې په لاس کې یې وه. بیا یې وویل:
ای خلکو! په خدایﷻ ایمان لرئ او د هغه حضور ته په درناوي سرونه ټیټوئ. د مېلمنو پالنه کوئ، پرهېزګار اوسئ او عدالت چلوئ. په دې وخت کې لږ غوندې غلی او په فکر کې

شو، بیا یې ورو ورو ګامونه واخیستل او ویې ویل: ژوندیو خلکو! زه تاسو ټولو ته وایم چې زما د تللو وخت دی، ژر کوئ پخوا تر دې چې زه د اجل پیاله وڅښم، هغه ګناه چې ما کړې وي، را په یاد کړئ او هر بد مې چې له تاسو هر یوه سره کړې وي، له مانه غچ واخلئ. خلک له ده څخه غلي او نیولي په څنګ تېرېدل. ده د ابوالفدا له کوهي نه اوبه راوغوښتلې، مخ او لاس یې ومینځل. یوه سرې ترې درې درهمه وغوښتل، ده سمدلاسه ورکړل او ویې ویل: ((د حساب فیصله دلته ښه ده، نه په قبر کې)) چې کور ته ستون شو؛ نو دی کور ته ننووت او ډېرو اصحابو بهر شپه رڼا کړه. سپېدې وچاودې ده وویل: ابوبکره! زه نور د پاڅېدلو توان نه لرم،پاڅېږه ماته قرآن ولوله. عایشه رضي الله عنها یې تر شا ولاړه وه. ده ایتونو ته غوږ نیولی و، ټولو ژړل، هېچا خپله ژړا نه شوه ټینګولای. نژدې ماښام و چې عزرائیل د کاله په دروازه کې راښکاره شو، د ننوتو اجازه یې وغوښتله. د خدای ﷻ استازي وویل: پرېږدئ چې دننه راشي. ټولو یې د ولادت د ورځې په څېر یو عجیبه ځلېدونکې برېښنا یو ځل بیا په سترګو کې ولیدله. عزرائیل ده ته وویل: د الله رسوله ! الله ﷻ خپل حضور ته بللی یې. ده وویل: ((زه دحق بلنې ته لبیك وایم)) له دې وینا سره دی ورېږدېد، د یوه آرام نفس په وتلو دده شونډې بېرته پاتې شوې او حق ته یې ځان وسپاره.

د الفت ژباړه: له ((لوړ خیالونو او ژور فکرونو)) څخه

**د متن لنډیز:**

رسول الله ﷺ د ټول عالم لپاره رحمت و. هغه له هېچا سره کینه نه کوله. د هغه مینه یوازې د الله ﷻ د مخلوق لپاره وه. هغه د عمر تر پایه هېچا ته بده خبره ونه کړه. د هېچا حق یې ونه خوړ او تر رحلت پورې یې د امت رښتینی بریالیتوب وغوښت. د ژوندانه تر وروستۍ شېبې پورې یې د الله ﷻ وحدانیت، عبادت، رښتینولۍ، پرهېزګارۍ او عدالت ته خلک رابلل. دهغه لارښوونې او د الله ﷻ احکام منل زموږ د دنیوي او اخروي بریالیتوب لامل دی؛ نو باید عمل پرې وکړو.



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې په وار سره متن ولولي، نور دې ورته غوږ ونيسي او ښوونکی دې لوستل وڅاري.
- هر زده کوونکی دې د رسول اللهﷺ د سيرت (کړو وړو) په اړه خبرې وکړي.
- د پورتني لوست مفهوم په لنډ ډول ووایاست.

((حضرت محمدﷺ به تل په فکر کې ډوب و، په هېڅ به يې پړه نه اچوله، کله به چې په لاره روان و، له هرې خوا به پرې سلامونه ويل کېدل. ده به هم هر چاته په مهرباني ځواب وايه. په ږيره کې يې شل ويښتان سپين نه ليدل کېدل؛ خو زهيرتيا يې ورځ په ورځ زياتېده. کله به چې اوښانو اوبه څښلې، دی به ورته ودرېد او هغه ورځې به يې په زړه راګرځېدې چې ده به د خپل تره اوښان څرول))

- په پورتني متن کې صفتونه ومومئ، په خپلو کتابچو کې يې وليکئ او په جملو کې يې وکاروئ.
- د لاندېنيو لغتونو متضاد پيدا کړئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ:

ورروستی　　ښکاره　　دنياوي　　برياليتوب　　کينه

ښه　　ژړا　　درناوی　　لږ

- لاندېني لغتونه معنا او په جملو کې استعمال کړئ:

زهير　　کوهی　　سپېدې　　توغ　　درناوی　　پالنه



## کورنۍ دنده

- له خلکو سره د رسول الله ﷺ د ښه چلند په اړه يوه مقاله وليکئ چې تر لسو کرښو کمه نه وي.

دریم لوست

# کار او ژوند



انسان د هوسا او خوښ ژوندانه لپاره کار او زيار ته اړ دی. کار او زيار د انسان ژوند نېکمرغه کوي. څوک چې زيات زيار ګالي او کار کوي، ژوند يې نېکمرغه وي. زيارکښ چاته اړ نه وي او چاته د سوال لاس نه اوږدوي. څوک چې کار کوي ژوند به يې سرلوړی او وياړمن وي.

- کارکول او زيار ايستل څه ګټې لري؟
- ستاسې پلار او مشر ورور څه کار کوي؟

د انساني ژوند ارزښت په کار او زيار کې نغښتی دی. د نړۍ ټول وګړي د ژوندانه د وسيلو د ترلاسه کولو او برياليتوب هيلې لري. هغه څوک ښه پرمختګ کولای شي چې کار کوي او زيار ګالي. هغه څوک چې کار نه کوي او زيار نه ګالي، بې وزله کېږي. دغسې کسان نورو ته اړ او بدن يې کمزوری کېږي.کار بدني ځواک زياتوي او انسان پياوړی کوي. هغه څوک بريالی دی چې ځواکمن بدن لري.

بېکاري تر ټولو ستره بلا ده. که څوک هر څومره بډای هم وي، بايد له کار او زيار څخه لاس وانخلي. کوم انسان چې وزګار ژوند تېروي، له ژوندانه څخه خوند نشي اخيستلای. کوم ملتونه چې ډېرکار کوي اوډېر زيار باسي، هېوادونه يې هم ډېر پرمختللي وي. د پرمختللو هېوادونو د وګړو ژوند آرام او هوسا وي.

وايي چې يو مېږی او چرچرۍ سره ګاونډيان وو. پسرلی، اوړی او منی د کار او زيار لپاره ښه موسمونه وي. مېږي په دغو موسمونو کې پرله پسې کار کاوه او زيار يې ګاله. مېږي ځان ته د ژمي توښه برابره کړه. چرچري به ټوله ورځ د ونو او بوټو پر ښاخونو ګرځېده راګرځېده، سندرې به يې ويلې او ساعت به يې تېراوه. د تنګلاسۍ د وخت فکر ورسره نه و. شپې ورځې تېرېدې، ژمی رالنډېده، خواړه کمېده او اړتيا ورته ډېرېده. ژمی راورسېد، ساړه او اورښتونه زيات او خواړه کم شول، غرونه او سمې واورو وپوښلې. ټول حشرات خپلو سوړو ته ننوتل. چرچري چې کار نه وکړی او د ژمي توښه يې نه درلوده، ژوند يې تريخ شو. څو ورځې يې ګوزاره وکړه؛ خو بيا اړ شو چې مېږي ته ورشي او په پور ترې خواړه وغواړي. مېږي ته ورغی، خواړه يې ځنې پور وغوښتل. مېږي ورته وويل:

د کار او زيار په وخت کې دې سندرې ويلې او بې غمه دې شپې ورځې تېرولې؛ که کار دې کړی وای او ځان ته دې توښه برابره کړې وای؛ نو اوس به دې هېچا ته اړتيا نه وه. چرچري ددې ځواب په اورېدو ډېره خپه (خجالت) شو او له ځان سره يې هوډ وکړ چې بيا به هېڅکله وزګار او بې ځايه وخت نه تېروي. کار به کوي، زيار به ګالي او د راتلونکې لپاره به سپما کوي.

بې زحمته راحت نشته زما وروره!
که راحت غواړې زحمت درلره بويه

د اسلام سپېڅلي دين هم په کار کولو، زيار ګاللو او حلالې پانګې ګټلو ټينګار کړی دی.
حلال رزق ګټل يې عبادت ګڼلی دی؛ نو مسلمان بايد له لټۍ او تنبلۍ څخه ځان وژغوري،
لارې ونه شکوي، بلهې وانخلي، حرام ونه خوري او د کار او زيار له لارې ځان ته حلال
رزق پيدا کړي.

**د متن لنډيز:**

موږ بايد د خپل ځان، کورنۍ او د هېوادوالو د هوساينې، نېکمرغۍ او خوښۍ لپاره
تل کار وکړو. ځان د ټولنې پر اوږو پېټی نه کړو، له بل چا څخه تمه ونه لرو او پر خپل
ځان ويسا پيدا کړو. خپل ځان او کورنۍ ته حلال رزق پيدا کړو او چاته د دروېزګرۍ
لاس اوږد نه کړو. هغو هېوادونو ډېر پرمختګ کړی چې وګړي يې زيارګالونکي او
لوستي دي. موږ بايد د علم په رڼا کې پرمختګ وکړو او د نړۍ په روان بهير کې د
ورګډېدو هوډ وکړو، ځکه؛ هوډ د برې لومړی شرط دی.



## فعاليتونه

- زده کوونکي دې متن په وار سره په لوړ آواز ولولي او د لوست په مفهوم دې خبرې وکړي.
- ښوونکی دې لاندې جملې ولولي، زده کوونکي دې جملې په غور سره واوري او بيا دې پوښتنوته ځوابونه ووايي:

ژمی راورسېد، ساړه او اورښتونه زيات او خواړه کم شول، غرونه او سمې واورو وپوښلې.
ټول حشرات خپلو سوړو ته ننوتل. چرچري چې کار نه وکړی او د ژمي توښه يې نه درلوده،
ژوند يې تريخ شو. څو ورځې يې ګوزاره وکړه؛ خو بيا اړ شو چې مېږي ته ورشي او يو څه
خواړه ځنې پور وغواړي.

- چې ژمی راورسېد څه وشول؟
- چرچري له مېږي څخه څه وغوښتل؟
- د ژمي له رارسېدو سره حشراتو څه وکړل؟
- کارکول کومې ګټې لري؟
- وزګارتیا کومې ستونزې رامنځته کوي؟
- په پورتني متن کې پنځه عام نومونه ومومئ او په جملو کې یې استعمال کړئ.
- لاندې لغتونه معنا او په جملو کې یې استعمال کړئ:

ساړه　　پور　　څواك　　اوربښت　　ګوزاره　　هوسا

سپما　　توښه　　واورې　　حشرات　　هوډ

ـ لاندېنی بیت په نثر واړوئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

بې زحمته راحت نشته زما وروره!

که راحت غواړې زحمت درلره بویه



کورنۍ دنده

ـ پورتني درس ته ورته یوه کیسه د کورنۍ له غړو زده کړئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې ټولګیوالو ته واوروئ.

## احتیاط

یو لېونی له یوه بل سړي سره د سیند پر غاړه ناست و. هره شېبه وروسته به یې سر یوې او بلې خوا ته کړاوه او یوه سترګه به یې هم ورسره پټوله.

هغه بل سړي ترې پوښتنه وکړه چې یاره! دا څه دربانديې شوي دي؟ خیریت خو به وي؟ څنګه هره شېبه سر ها خوا دې خوا کړوې او سترګه هم ورسره پټوې؟

ځواب یې ورکړ:

د سیند پورې غاړه د یوه سړي په لاس کې ستن ده، خپل شلېدلی کمیس ګنډي؛ نو زه ځکه سر هاخوا دې خوا کړوم چې په ناپامۍ کې زما سترګه ژوبله نه کړي.

شپږم لوست

# نومځري (ضميرونه)






نومځري هغه کلمه ده چې د نوم پرځای استعمالېږي .د نومځري کارول د نوم د پرله پسې تکرار مخه نيسي. په وينا او ليکنه کې چې يو شی ډېر تکرار شي انسان زړه تنګوي، له همدې امله په ټولو ژبو کې د نامه د پرله پسې تکرار د مخنيوي او لنډون په موخه، نومځري کارېږي. په دې لوست کې به نومځري در وپېژنو.

- که احمد را روان وي او مور ووايو چې هغه را روان دی، په دې جملې کې هغه د چا پر ځای وکارېده؟
- که زرغونه ښوونکې نه وي راغلې او حميده ښوونکې ووايي چې د هغې پر ځای زه درس درکوم، دلته د (هغې) کلمه د چا پر ځای کارېدلې ده؟

په پښتو کې نومځری د جنس، عدد، حالت او شخص له مخې ګردانېږي.

د نومځرو ډولونه:

۱_ شخصي ضميرونه

۲_ ملکي يا اضافي نومځري

۳_ اشاري نومځري

٤_ استفهامي نومځري

٥_ پلوي (سمتي) نومځري

٦_ مبهم نومځري

۷_ اشتراکي نومځري

دلته تاسو ته د نومځرو (ضميرونو) څو اساسي ډولونه درپېژنو:

۱_ شخصي نومځري: شخصي نومځري د کسانو يا اشخاصو د نومونو پرځای استعمالېږي او په دوه ډوله دي:

غښتلي نومځري او کمزوري نومځري.

الف _ غښتلي نومځري يا منفصل ضميرونه:

په يوازې توګه استعمالېږي، له بلې کلمې سره پيوست نه راځي او په خپلواکه توګه معنا ورکوي.

| اشخاص | مفرد | | | جمع |
|---|---|---|---|---|
| لومړی شخص | اصلي حالت | | اوښتی حالت | اصلي حالت |
| | زه | | ما | موږ |
| دويم شخص | ته | | تا | تاسې (تاسو) |
| دريم شخص | نرينه | دی | ده | دوی |
| | | هغه | هغه | هغوی |
| | ښځينه | دا | دې | دوی |
| | | هغه | هغې | هغوی |

ب ـ کمزوري نومځري (متصل ضميرونه):

دا نومځري په خپلواکه توګه معنا نه لري، له نامه سره چې استعمال شي خپله معنا څرګندوي.

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| لومړی شخص | مې | مو |
| دويم شخص | دې | مو |
| دريم شخص | يې | يې |

لکه: کتاب مې راکړه، کتاب دې واخله، کتاب يې واخيست، کتابونه مو واخيستل، کتابونه مو واخلئ، کتابونه يې واخيستل.

۲ ـ ملکي يا اضافي نومځري:

يو څيز په څه يا چا پورې مربوط بولي يا په بله وينا يو شی د څه يا چاګڼي.

<table>
<tr><th>اشخاص</th><th colspan="2">مفرد</th><th>جمع</th></tr>
<tr><td>لومړی شخص</td><td colspan="2">زما</td><td>زموږ</td></tr>
<tr><td>دويم شخص</td><td colspan="2">ستا</td><td>ستاسې</td></tr>
<tr><td rowspan="2">دريم شخص</td><td>نارينه</td><td>د ده</td><td>د دوی</td></tr>
<tr><td>ښځينه</td><td>د دې</td><td>د دوی</td></tr>
</table>

لکه:

زما کتاب راکړه.

زموږ کتابونه يوسه.

ستا کتاب يې راکړ.

ستاسې کتابونه کوم دي؟

د ده کتاب څه شو؟

د دې کتاب چېرته دی؟

د دوی کتابونه څه شول؟

٣ـ اشاري نومځري:

هغه نومځري دي چې اشخاصو او شیزونو ته اشاره کوي او د هغو پر ځای استعمالیږي.

| جمع | | مفرد | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوښتی حالت | اصلي حالت | اوښتی حالت | اصلي حالت | جنس | واټن | ګڼه |
| دغو | دغه | دغه | دغه | نرینه | لنډ | ١ |
| دغو | دغه | دغې | دغه | ښځینه | | |
| هغو | هغه | هغه | هغه | نرینه | لیرې | ٢ |
| هغو | هغه | هغې | هغه | ښځینه | | |
| هوغو | هوغه | هوغه | هوغه | نرینه | ډېر لیرې | ٣ |
| هوغو | هوغه | هوغې | هوغه | ښځینه | | |

٤ـ استفهامي نومځري:

د پوښتنې لپاره کارول کېږي. د شخص، وخت، ځای څرنګوالي اوڅومره الي له مخې لاندې ډولونه لري:

څوك: د شخص لپاره استعمالیږي، لکه: څوك راغی؟

چا: د څوك اوښتی شکل دی او د شخص لپاره استعمالیږي، لکه: چا وژړل؟

ولې: د یوه عمل او پېښې لامل پوښتي، لکه: ولې راغلې؟ ولې درس نه لولې؟ ولې جومات ته نه ځې؟




زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

۱ـ ځانګړي نومځري په څو ډوله دي؟ هر ډول یې په مثالونو کې څرګند کړئ.

۲ـ څو ډوله نومځري پېژنئ؟ نومونه یې واخلئ.

۳ـ لاندې نومځري مشخص کړئ اوخپل ټاکلي نومونه ورته ولیکئ:

زه.......... ته............ ستا................ هغه.................

٤ـ په لاندې جملو کې نومځري په نښه کړئ او نومونه یې ووایاست:

ـ زه هره ورځ ښوونځي ته ځم.

ـ د ده کتاب له ماسره دی.

ـ څوك به راغلی وي؟

٥ـ زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او یو له بل څخه دې د نومځرو پوښتنې وکړي. ښوونکی دې د پوښتنو ځوابونه وڅاري.

٦ـ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې نومځري په نښه کړي:

ـ څوك راغی؟

ـ له چا سره دې ولیدل؟

ـ آیا دا کتاب ستا دی؟

ـ هغه کله راځي؟

۷ـ د لاندې ضمیرونو څنګ ته په پنسل ولیکئ چې کوم ډول ضمیرونه دي او د کوم شخص لپاره راځي.

څوک:

مو: ....................................................................

ستا: ...................................................................

ته: .....................................................................

دغه: ...................................................................

دوی: ...................................................................

۸ـ زده کوونکي دې په خپله خوښه یو پراګراف ولیکي او په هغه کې دې استفهامي ضمیرونه وکاروي.

۹ـ زده کوونکي دې په درې یا څلورو جملو کې کمزوري ضمیرونه وکاروي او د خپلو ټولګیوالو په وړاندې دې ولولي او ښوونکی دې د دوی تېروتنې سمې کړي.




زده کوونکي دې له کوره تر ښوونځي او له ښوونځي څخه تر کوره د خپل تګ او راتګ حال ولیکي او په هغو کې دې نومځري په نښه کړي چې کوم نومځري یې کارولي دي.



پنځم لوست

# کندهار

هېواد زموږ کور دی. موږ باید د خپل کور په اړه معلومات ولرو. د خپل هېواد ولایتونه، ولسوالۍ، بازارونه، حاصلات، صادرات، واردات او نور يې باید وپېژنو.

په دې لوست کې به د خپل هېواد د یوه ولایت او پخوانۍ پلازمېنې (کندهار) په اړه معلومات تر لاسه کړو.

- د چا په پاچاهۍ کې د کندهار پر ځای کابل پلازمېنه وټاکل شوه؟
- خرقه شریفه د افغانستان په کوم ښار کې ده؟

کندهار د هېواد په سوېل لوېدیځ کې پروت دی. کندهار د افغانستان له سترو تاریخي ښارونو څخه شمېرل کېږي.

په (۱۷٤۷) مېلادي کال کې دافغانستان نومیالي امپراتور احمدشاه بابا کندهار خپل مرکز وټاکه. احمدشاه بابا په کندهار کې د احمد شاهي ښار بنسټ کېښود. د تېمور شاه په وخت کې د کندهار پر ځای کابل پلازمېنه وټاکل شوه.

د کندهار ختیځ او سوېل لور ته بلوچستان پروت دی. لوېدیځ لور ته یې هلمند. شمال ته یې ارزګان او شمال ختیځ ته یې زابل پروت دی. کندهار اووه لس ولسوالۍ لري. د کندهار اړوندې ولسوالۍ دا دي:

خاکرېز، ارغنداو، رېګستان، ښوراوک، میوند، سپین بولدک، معروف، دامان، ژړۍ (ژېړۍ)، غورک، میانشین، ډنډ، نېښ، پنجوایي، شاه ولي کوټ، شګه او ارغسان.

کندهار نیمه صحرایي اقلیم لري. هوا یې په مختلفو سیمو کې توپیر کوي. د اورښت کچه یې ډېره ټیټه ده. په زیاترو سیمو کې یې د اورښت اندازه په یو کال کې له سلو څخه تر څلورو سوو ملي مترو پورې رسېږي.

د ارغنداو، ترنک او وچ مانده بهاندو سیندونو د کندهار کرنیزې ځمکې خړوبې کړې دي. هلمند سیند هم له کندهار ولایت څخه تېرېږي؛ خو په کرنه کې ترې ګټه نه ده اخیستل شوې. غنم، جوار، شولې او وربشې یې مهمې غلې دانې دي. انګور، انار، هندوانې، خټکي او نورې یې مهمې مېوې دي.

د کندهار انار، انګور او شکر پاره ځانګړې شهرت لري او د افغانستان د صادراتو لویه برخه جوړوي.

په کندهار کې ډول، ډول سبزیانې، لکه: پالک، ګندنه، کاهو، کرم، ګلپي، کدو، ټېپر، دنیا، پیاز، مولۍ، بادرنګ، بینډۍ، تورۍ، مرچ او نور هم په زیاته اندازه کرل کېږي.

په وچو مېوو کې یې وشکې (ممیز) د ځانګړې یادونې وړ دي. دغه وشکې څو ډولونه لري او دافغانستان د صادراتو لویه برخه جوړوي.

په لاسي صنایعو کې یې غاړې جوړونه (سکوی) او خولۍ جوړونه په سیمه کې خاص

شهرت لري.

د کندهار د وېش بندر له لارې ډېر توکي افغانستان ته راځي او له افغانستان څخه بهرنيو هېوادونو ته لېږدول کېږي.

غواوې، اوښان، مېږې، پسونه، اسونه او خره يې مهم څاروي دي.

کندهار ولايت ډېرې تاريخي سيمې او ودانۍ لري. د منديگک غونډۍ، پنجوايي، شمشېرغار، چهل زينې، لکي غر يا سرپوزه، کوجولا غار، نارنج مانۍ، حسين شاهي ارگ، خرقه مبارکه او نور يې لرغوني او تاريخي ځايونه دي.

مبارکه خرقه د احمدشاه بابا د واکمنۍ پر مهال کندهار ته راوړل شوه. مبارکې خرقې ته په کندهار کې يوه ښکلې ودانۍ جوړه شوې ده. دغې ودانۍ ته گڼ خلک د مبارکې خرقې د ليدو په موخه ورځي.

په (۱۱۲۱) هجري قمري کې ملي مشر ميرويس خان په کندهار کې ملي حکومت جوړ کړ. په (۱۱٦۱) هـجري قمري کې احمد شاه بابا د افغاني امپراتورۍ بنسټ کېښود. د دغې امپراتورۍ پلازمېنه د کندهار ښار و.

د کندهار ښار په پخوانيو وختونو کې د سياسي مرکز ترڅنگه ادبي مرکز هم پاتې شوی دی. لکه د هوتکيانو په وخت کې او بيا په راوروسته کې د احمد شاه بابا د پاچاهۍ په وخت کې. په دغه مرکز کې د پښتو ژبې د ودې او پراختيا لپاره ډېر کارونه شوي وو، د دې ترڅنگه د پښتو ژبې نامتو شاعران هم په دغه مرکز کې پالل کېدل او په ادبي کارونو بوخت وو.

پښتو ژبې ځينې مشهور کتابونه، لکه: پټه خزانه او معرفت الافغاني په دغه وختونو کې ليکل شوي دي.

**د متن لنډيز:**

د افغانستان د لويو او مشهورو ښارونو څخه يو هم کندهار دى چې د هېواد په جنوب لويديځ کې پروت دى او د تاريخي اهميت له مخې د يادولو او پېژندلو وړ دى. کندهار اوولس ولسوالۍ لري او اقليم يې نيمه صحرايي دى. د اوربښت اندازه يې په کال کې له سلو نه تر څلور سوو ملي مترو پورې وي. د کندهار ولايت ډول ډول غلې دانې او راز، راز مېوې لري چې مشهورې مېوې يې انار او انګور دي. کندهار د ډول ډول ښارويو د روزنې له پلوه هم د يادونې وړ دى. مبارکه خرقه د احمد شاه بابا په وخت کې له فيض آباد نه کندهار ته راوړل شوه او يوه ښکلې ودانۍ ورته جوړه شوه چې تراوسه پورې هلته ساتل شوې ده او زيات شمېر خلک يې ليدو ته ورځي. د ميرويس نيکه په وخت کې د افغانستان پلازمېنه د کندهار ښار و. احمد شاه بابا هم د کندهار ښار د پلازمېنې په توګه وساته او د يوې لويې امپراتورۍ بنسټ يې کېښود.

## فعاليتونه

۱ـ لاندېنيو پوښتنو ته شفاهي ځوابونه ووایاست:

ـ کندهار څو ولسوالۍ لري؟ د پنځو نومونه يې ووایاست.

ـ د افغانستان دويم لوى ښار کوم دى؟

ـ د کندهار لرغونې او تاريخي سيمې کومې دي؟

ـ د کندهار مهم حاصلات کوم دي؟

ـ د احمد شاه بابا مزار چېرته دى؟

۲ـ په لاندې مېوو کې کومه یوه په کندهار کې ده، له نوم څخه یې په پنسل کرښه تاو کړئ:

الف: توتان ب: غوزان ج: انار د: خټکي

۳ـ په لاندې بندرونو کې کوم یو په کندهار کې دی نوم یې پخپلو کتابچو کې ولیکئ؟

الف: د تورخم بندر ب: د شېرخان بندر

ج: د تور غونډۍ بندر د: د وېش بندر

٤ـ لاندېني لغتونه په کتابچو کې ولیکئ لومړی یې معنا او بیا یې په جملو کې استعمال کړئ:

پلازمېنه سوېل اوربښت

ټېټه خړوب کرنه

سکوی سمڅ ماڼۍ

٥ـ د لاندېنیو لغتونو متضادې معناوې پیدا او په شفاهي ډول یې په جملو کې استعمال کړئ:

ټيټ خړوب ډېر

ويجاړ خاص مشر

٦ـ د لاندېنیو نومځرو نومونه ووایاست او په جملو کې یې استعمال کړئ:

دې یې دغې هغې

۷ـ ښوونکی دې لاندېنی متن زده کوونکو ته د املا په توګه ووایي او بیا دې د دوی د لیکنو نیمګړتیاوې سمې کړي:

((مبارکه خرقه د احمدشاه بابا د واکمنۍ پر مهال له فیض آباد څخه کندهار ته راوړل شوه. مبارکې خرقې ته په کندهار کې یوه ښکلې ودانۍ جوړه شوې ده. دغې ودانۍ ته ګڼ شمېر خلک د مبارکې خرقې د لیدو په موخه راځي.

په (۱۱۲۱) هجري قمري کې ملي مشر میرویس خان نیکه په کندهار کې ملي حکومت جوړ کړ. په (۱۱۶۱) هـجري قمري کې احمد شاه بابا د افغاني امپراتورۍ بنسټ کېښود چې پلازمېنه یې د کندهار ښار و))

لاندینو پوښتنو ته بشپړ ځوابونه ووایاست.

- په کوم قمري کال کې کندهار د افغاني امپراتورۍ پلازمېنه شوه؟
- مبارکه خرقه له کوم ځای څخه راوړل شوه؟
- مبارکه خرقه د چا د واکمنۍ پر مهال کندهار ته راوړل شوه؟
- ملي مشر میرویس خان چېرته ملي حکومت جوړ کړ؟

۸ـ د کندهار ښار د کومو پښتنو پاچاهانو په وخت کې د پښتو ژبې د ودې او پراختیا مرکز و او د دغه مرکز د کومو مهمو اثارو نومونه یادولای شئ.




- ګرانو زده کوونکو! تاسو هر یو د پورتني لوست په څېر؛ خو په ډېر لنډ ډول خپل ولایت معرفي کړئ.





# د افغانستان لويې لارې (محاوره)

خبرې اترې د دوو يا ډېرو كسانو ترمنځ كېږي. په خبرو اترو كې معمولاً د يوې موضوع پر بېلابېلو اړخونو خبرې كېږي. د خبرو اترو اوږدوالى او لنډوالى په موضوع پورې اړه لري، يعنې كله اوږدې او كله لنډې وي. همدارنگه خبرې اترې بېلابېلې موضوعگانې رانغاړي، خبرې اترې د دويمې ژبې په زده كړه كې ډېر اغېز لري. د همدغو خبرو اترو په لړ كې سړى كولاى شي يوه بله ژبه ښه زده كړي.

- خبرې اترې د دويمې ژبې په زده كړه كې څه اغېز لري؟
- تاسې كله په دويمه ژبه كې له چا سره خبرې اترې كړې دي او گټه يې څه وه؟

اسحاق  د اتم او عمران د شپږم ټولګي زده کوونکي دي. دواړه په یوه لیسه کې درس وایي. اسحق په جغرافیه کې ښه معلومات لري. عمران ډېر لېوال دی چې د خپل هېواد په اړه هراړخیز معلومات تر لاسه کړي. عمران  د هېواد د لویو لارو په اړه له اسحق څخه پوښتنې کوي او هغه معلومات ورکوي.

- عمران: اسحاقه! دافغانستان لویې سوداګریزې لارې کومې دي؟

- اسحق: عمرانه! زما پلار  د وچو مېوو سوداګر دی، زه ورسره هم کله کله په رخصتیو کې ورسره کار کوم، ځینې مهمې لارې ما لیدلي اوځینې مې لوستي دي، په ترتیب سره یې درته وایم.

یوه لویه لاره له کابله  ختیځ لورته غځېدلې ده. دا لاره دکابل تورخم په نامه یادېږي.  په دې لاره د افغانستان سوداګریز توکي پاکستان، هند، بنګله دېش او نورو هېوادونو ته د کراچۍ بندر له لارې لېږدول کېږي.  همدارنګه له دغو هېوادو او نورې نړۍ څخه سوداګریز توکي په همدغې لارې افغانستان ته رالېږدول کېږي.

- اسحاقه!  دکابل - تورخم  پر لویه لاره د افغانستان  کوم ښارونه، ښارګوټي او بازارونه پراته دي؟

- عمران: پردې لویه لاره د سروبي، درونټې، مارکو او پخپله د تورخم بازارونه پراته دي.

د کابل - سروبي ترمنځ د (ماهیپر) پیچومې پروت دی چې په ژمي کې مسافر له ډېرو ستونزو سره مخامخوي. د جلال آباد ښار هم پر دې لاره پروت دی. دا لویه لاره له کابل څخه تر تورخم پورې  غځېدلې ده او له تورخمه بیا پېښور ته رسېږي.

- عمران: ښه نو بله لویه لاره کومه ده؟

- اسحق:عمرانه! بېړه مه کوه، ټولې درته وار په وار وایم.

بله لویه او تر ټولو اوږده لاره د کابل تور غونډۍ لار ده. دا لاره له کابله پیلېږي، له میدان وردګ، غزني او زابله تېرېږي او دکندهار ښار ته رسېږي. په دې لار کې د سیدآباد، مقر او شاجوی بازارونه د غزني ښار او کلات ښار ګوټي پراته دي.

همدغه لاره له کندهاره مخ پر شمال د هرات ښار ته غځېدلې ده.  دا لاره له هلمند،

نیمروز او فراه څخه تېرېږي او د هرات ښار ته رسېږي. پر دې لاره د کشک نخود،گرشک، دلارام، فراه رود، ادرسکن او شینډنډ بازارونه پراته دي. له هرات ښار څخه بیا تورغونډۍ بندر ته لاره غځېدلې ده. د ((تورغونډۍ)) بندر له لارې افغانستان له ترکمنستان او د اسلام کلا له لارې له ایران سره نښلوي.

- عمران: اسحاقه! موږ لوستي دي چې د حیرتانو په نامه بندر هم لرو، هغه چېرته دی؟

- اسحاق: گوره عمرانه! یوه بله لاره هم شته چې کابل له حیرتانو بندر سره نښلوي. دا لاره له پروان څخه تېرېږي، په سالنگ وراوړي او د بغلان په پلخمري کې کینې لاس ته په سمنگانو ورگرځي. دا لاره له سمنگانو تېرېږي او تر بلخ ولایت پورې غځېږي. د مزار شریف ښار ته نارسېدلې ښي لاس ته گرځي او د (حیرتانو) بندر ته رسي. ددې بندر له لارې افغانستان له ازبکستان سره نښلي.

- اسحاقه! شېر خان بندر چېرته دی؟

- گوره عمرانه! د همدې کابل حیرتانو په لارې د بغلان د پلخمري په ښار کې ښي لاس ته یو عمومي سړک کندز ته غځېدلی دی. د کندز له ښاره مخ په شمال یوه بله لاره (شېرخان) بندر ته غځېدلې ده. د شېر خان بندر له لارې افغانستان له تاجکستان سره نښلوي.

- اسحاقه! تا د افغانستان کوم ښارونه لیدلي دي؟

ما کابل، جلال آباد، خوست،گردېز، کندز او مزارشریف ښارونه لیدلي دي.

- عمران: اسحاقه ! نو تا د غزني، کندهار او هرات مهم او تاریخي ښارونه نه دي لیدلي؟

- اسحاق: نه! ما دغه درې واړه ښارونه نه دي لیدلي؛ خو که خدای ﷻ وکړل سږکال مې له پلار سره هرات ته ځم؛ نو انشاءالله دغه ښارونه به هم ووینم.

ډېره مننه ورورە! ستا دې کور ودان وي، ډېر معلومات دې راکړل.

**د متن لنډیز:**

د هر هېواد وګړي له خپل هېواد سره مینه لري؛ موږ هم باید له خپل هېواد سره مینه ولرو او په اړه یې معلومات ترلاسه کړو. موږ باید د هېواد لویې لارې وپېژنو او په اهمیت یې پوه شو. د هېواد د بېلا بېلو ښارونو، پوهنتونونو، کارخانو، زراعتي او صنعتي سیمو پېژندل زموږ ملي دنده ده.

## فعالیتونه

- هر زده کوونکی دې له خپل کلي یا ښار څخه تر کابله پورې پر غځېدلې لارې خبرې وکړي.
- د افغانستان د مشهورو بندرونو نومونه وواياست.
- د حیرتانو بندر چېرته پروت دی؟
- له ایران سره په پوله د افغانستان کوم بندر پروت دی؟

تورخم بندر د کومو سیمو ترمنځ او په کوم ولایت کې پروت دی؟ سم ځواب په نښه کړئ!

الف: د مزارشریف - تهران ترمنځ او په بلخ ولایت کې

ب :د کندهار - کویټې ترمنځ او په پکتیا ولایت کې

ج: د کابل - اسلام آباد ترمنځ او په کونړ ولایت کې

د: د جلال آباد- پېښور ترمنځ او په ننګرهار ولایت کې

د افغانستان مهم سوداګریز بندرونه کوم دي؟ سم ځواب په نښه کړئ.

الف: ارنوی بندر، بلخ بندر، بست کلا بندر، پامیر بندر

ب: واخان بندر، ای خانم بندر، کراچی بندر، شینډنډ بندر، کلات بندر

ج: تورخم بندر، حیرتانو بندر، شېرخان بندر، تور غونډۍ بندر

لاندېني لغتونه په کتابچو کې ولیکئ، لومړی یې معنا او بیا یې په جملو کې استعمال کړئ:

| | |
|---|---|
| هر اړخیز | څېړي |
| توکي | کنګل |
| لېږدول | نښتل |
| رالېږدول | مننه |
| پېچومی | واوره |

د لاندېنیو لغتونو متضادې معناوې په دویم کتار کې پیدا او په شفاهي ډول یې په جملو کې استعمال کړئ:

| | |
|---|---|
| اوږده | نارسېدلې |
| کیڼ لاس | لانده |
| رسېدلې | ښي لاس |
| وچ | لنډ |

یو زده کوونکی دې لاندېنی متن ولولي، نور دې په ځیر سره واوري او بیا دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- اسحاق: عمرانه! نورې لویې لارې هم شته. ځینې یې لا تردې لارو ډېرې اوږدې هم دي. بله لویه او تر ټولو اوږده لاره د کابل تور غونډۍ ده. دا لاره له کابله پیلېږي، له میدان وردګ، غزني او زابله تېرېږي او د کندهار ښار ته رسېږي. په دې لار کې د سید آباد، مقر او شاجوی بازارونه د غزني او کلات ښارونه پراته دي.

- د کابل - کندهار پر لویه لاره کوم بازارونه پراته دي؟
- د غزني ښار پر کومه لویه لاره پروت دی؟
- په پورتني لوست کې ینځه خاص او ینځه عام نومونه پیدا کړئ.
- زده کوونکي دې نظر ورکړي چې بندرونه د یوه هېواد لپاره کومې ګټې لري؟



## کورنۍ دنده

ګرانو زده کوونکو! تاسو هر یو د لوستل شوي لوست په څېر، خو په ډېر لنډ ډول د خپل ولایت لارې ورویېژنئ.

کر د ګلو کړه چې سیمه دې ګلزار شي　　اغزي مه کره په پښو کې به دې خار شي
کوهی مه کنه د بل سرې پــــــه لار کې　　چیرې ستــا به د کوهي په غاړه لارشي
(رحمان بابا)

# لیک نښې




لیك نښې لیكونكی او لوستونكی له تېروتنو څخه ژغوري. د دغو نښو په زده کولو او مراعـاتولو انسان د سمو لیکلـو او سـمو لوسـتلو جوګـه کـېږي؛ نو د لیك نښو زده کول د هر چا لپاره ضروري ګڼل کېږي.

که لیك نښې په لیکلو کې په پام کې ونه نیول شي، نو لیکنه او لوستنه به د تېروتنو له امله نیمګړې وي.

موږ دغه لیك نښې لولو او زده کوو يې چې په لیك لوست کې د نیمګړتیاوو او تېروتنو مخه ونیسو او د سمو لیکلو او لوستلو جوګه شو.

- تاسو د لیك نښو په اړه څه معلومات لرئ؟
- د لیك نښو مراعاتول لیکونکي او لوستونکي ته څه ګټه لري؟

له تورو پرته ځينې نښې هم شته چې له لوستونکو سره په سمو لوستلو کې مرسته کوي. دغه نښې ډېرې مهمې او ارزښتناکې دي، ځکه چې لوستونکی له تېروتنو څخه ژغوري. که دغه نښې په پام کې ونیول شي، نو لوستونکي کولای شي په دې پوه شي چې په کوم ځای کې تم شي، سا واخلي او یا کومه کلمه په بلې پورې وتړي.

د لیکنې یو شمېر کیفیتونه، لکه: پوښتنه، خطاب، حیرانتیا، تمسخر یا ملنډې وهل، ندا او داسې نور د همدغو نښو په واسطه څرګندېږي. له دې امله هغه نښې دلته راوړو چې ډېرې اړینې دي.

۱ـ کامه (،):

دا نښه په لوستلو کې د لږ ځنډ لپاره راځي، لکه: څه چې کرې، هغه به رېبې. څه چې دې راکړل، بېرته مې درکړل.

د ځو نومونو د بېلولو لپاره هم راځي، لکه: د افغانستان مشهور ولایتونه دادي: کابل، کندهار، ننګرهار، مزار، هرات، کندوز او نور.

۲ـ ټکی یا نقطه (.):

دا نښه د یوې بشپړې جملې په پای کې ایښودل کېږي، لکه: د ننګرهار ولایت مرکز د جلال اباد ښار دی.

ـ وری یا حمل د کال لومړنۍ میاشت ده.

۳ـ دوه سر په سر ټکي یا شارحه (:):

کله چې یوه جمله یا کلمه تشریح کوو، نو دا نښه راوړو، لکه: که په دې لاندې لارښوونو عمل وکړئ، نه ناروغه کېږئ:

۱ـ د شپې له خوا وختي ویده کېدل.

۲ـ لږه ډوډۍ خوړل.

۳ـ سهار له وخته پاڅېدل.

او یا دا چې: رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي: ((هر کبرجن، بد خویه او بخیل دوزخي دی.))

٤ـ پوښتنیزه یا سوالیه نښه (؟):

دا نښه د پوښتنیزو جملو په پای کې راځي، لکه:

ـ سید جمال الدین افغان چېرته وفات شوی و؟

ـ ستا کور چېرته دی؟

٥ـ د حیرانتیا یا ندا نښه (!):

دا نښه په لاندې وختونو کې کارېږي:

۱_ د خطاب لپاره، لکه:
ښاغلو! ورونو! زده کړه وکړئ، وخت خوشې مه تېروئ!
۲_ د غږ کولو لپاره، لکه:
_ زلمیه!
_ یا خدایه!
۳_ د امر پر وخت، لکه:
چوپ شه!، دلته کښېنه!، هلته لاړشه!
٤_ د هیلې څرګندونې پر وخت، لکه:
کاشکې زه هم درسره وای!
٥_ د حیرانتیا پر وخت لکه: توبه، توبه، دومره ټګي!
٦_ د ستاینې او آفرین پر وخت لکه: آفرین ستا په مېړانه!
۷_ د افسوس او ارمان په وخت: دریغه، دریغه! _ کاشکې! چې ما هم زده کړه کړې وای.
۸_ د خوشحالۍ په وخت کې: واه، واه څومره ښه!
٦_ څنګ په څنګ ټکي یا د تېرېدنې نښه (...):
کله چې د یوې کلمې یا نوم له څرګندولو نه تېرېږو؛ نو همدغه علامه ایښودل کېږي، لکه: زما په کتابتون کې د تاریخ، ریاضي، صرف، نحو او ... کتابونه شته.
غوره ده چې د لنډیز لپاره یوازې درې ټکي وکارول شي.
۷_ غبرګې لیندۍ (( )):
که د بل چا خبرې او یا د کوم کتاب عبارت په لیکنه کې راوړل شي، نو د غبرګو لیندیو په منځ کې لیکل کېږي، لکه:
رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي: ((پاکوالی د ایمان جز دی.))

**د متن لنډیز:**

ډېر خلک د لیک په لیکلو او لوستلو کې لیک نښې په پام کې نه نیسي، حال دا چې د لیکلو او لوستلو ضروري او لازمي برخه ده. باید لیک نښو ته کلکه پاملرنه وشي. د لیک نښو په مراعاتولو سره انسان له تېروتنو ژغورل کېږي او د سمو لیکلو او لوستلو جوګه کېږي.

که څوک د ادب په نورو برخو کې معلومات ولري او په دې برخه کې لاسبرى ونه لري، لوستل او لیکل به یې کمزورې وي، نو اړینه ده چې دې برخې ته هم په کلکه پاملرنه وکړي.



## فعالیتونه

زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

۱_ په لیکلو او لوستلو کې د لیک نښو کارول څه ګټه لري؟

۲_ ټکی یا نقطه څه وخت کارول کېږي؟

۳_ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې صفتونه پیدا کړي:

_ زما واسکټ تور دی.

_ د احمد موټر سپین دی.

_ دا دېوال پلن دی.

_ محمود ځیرک هلک دی.

٤_ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې اړوندې لیک نښې ولیکي.

_ دا څوک دی؟

_ دلته راشه.

_ نخود وخکې، منې او انګور مې واخیستل.

٥_ زده کوونکي دې په لاندې متن کې لازمي لیک نښې پر ځای کړي:

د لیکنې یو شمېر کیفیتونه، لکه: پوښتنه ( ) خطاب ( ) کامه ( ) تمسخر ( ) پای ( ) شارحه ( ) او نور ددغو لیک نښو په واسطه څرګندېږي.

٦_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي:

۱_ کیفیت ۲_ څرګند ۳_ هیله ٤_ ملنډې

۷_ یو زده کوونکی دې پر تخته یوه جمله ولیکي او بل دې ورته اړونده نښه ولیکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لاندې لیک نښو لپاره جملې جوړې کړي،راتلونکي ساعت ته دې ټولګي ته راوړي او نورو ملګرو ته دې ولولي. (؟)، ( ...)، (،)، (!).

اتم لوست

# د ناروغ پوښتنه

## (محاوره)



ټولنيز ژوند ډېرې ښېګڼې لري. يوه ښېګڼه يې يو له بل سره مرسته او همکاري ده. يو له بل سره له مرستې پرته ژوند نيمګړی وي.

په ټولنه کې ګډ ژوند دا غوښتنه کوي چې يو له بل سره راشه درشه ولرو، د يو بل په حال ځان خبر کړو. په تېره بيا د ستونزو او اړتيا په وخت کې يو بل ته ورشو. له دغو کارونو څخه يو يې د ناروغ پوښتنه ده. د دغه کار يوه ګټه دا ده چې ناروغ خوښېږي، روحيات يې تقويه کېږي او د روغتيا احساس کوي. د ناروغ پوښتنه کول سنت دي.

- کله چې يو څوک ناروغېږي بايد څه وکړي؟
- د ناروغ پوښتنه څه ګټې لري؟

شریف: اکبره وروره! خبر شوم چې ناروغ یې، نو سمدلاسه را روان شوم چې پوښتنه دې وکړم.

اکبر: هو! شریف جانه! لږ ناروغ وم، خو اوس یو څه ښه یم.

شریف: څه ډول ناروغي درته پیدا شوې وه اکبره وروره!

اکبر: اول زکام وم، بیا مې سینه خرابه شوه او ورپسې تبې ونیولم.

ـ ما ته خو زکام دومره خطرناکه ناروغي نه ښکاري.

ـ ما هم همداسې فکر کاوه، خو کله چې مې تکلیف زیات شو، نو پوه شوم چې زکام هم ډېره ناوړه ناروغي ده.

ـ اوس څنګه یې اکبر جانه؟

ـ اوس یو څه ښه یم. که یې روغتون ته نه وای رسولای، نو الله جل جلاله خبر چې څه به کېدل؟

ـ ښه وروره! څو ورځې په روغتون کې وې؟

ـ درې ورځې.

ـ کور ته کله راغلې؟

ـ پرون کورته راغلم.

ـ د ناروغۍ دې پنځمه ورځ ده، خو زه همدا نن خبر شوم چې ګیله رانه ونه کړې!

ـ ولې به ګیله کوم. زه پوهېږم چې دربانديې ګران یم او ته هم پرما ګران یې.

ـ همداسې ده. له یو زړه نه بل ته لار وي.

ـ وروره! زما د دوا خوړلو وخت دی. که اجازه وي زه به دوا وخورم.

ـ ډېره ښه ده، د څو ورځو دوا یې درکړې ده؟

ـ د شپږو ورځو لپاره یې دوا راکړې ده.

ـ چې دا پای ته ورسېږي، بیا خو به نورې دوا ته اړتیا نه وي؟

ـ نه پوهېږم وروره! چې ډاکټر څه راته وایي همغسې به کوم.

ـ ستا خبره سمه ده. د ډاکټرانو له لارښوونو سره سم چلند پکار دی.

ـ هو وروره! د ډاکټر لارښوونو ته پام نه کول، ستونزې پېښوي.

ـ ربښتيا! ودې نه ويل چې د خوراک، څښاک او پرهېز په اړه يې درته څه ويلي که نه؟

ـ ولې نه! د يخو، تروو او ډېرو غوړو څېزونو له خوړلو څخه يې پرهېز کړی يم.

ـ ربښتيا هم دا ټول هغه شيان دي چې د سينې تکليف نور هم زياتوي.

ـ ته بايد کلک پرهېز وکړې او ځان تود وساتې.

ـ ولې نه! هرومرو به يې کوم.

ـ اورېدلي دې نه دي چې وايي: پرهېز نيم علاج دی.

ـ هو وروره! که مې پرهېز نه وای کړی، نو دومره ژر نه ښه کېدم.

ـ ښه وروره! ښه شوه چې الله جل جلاله روغ کړې. زه به درځنې لاړشم.

وروره! زموږ سره پاتې شه، ساعت به مو تېر شي.

ژوندی اوسې وروره، روغتيا دې په برخه شه، مېلمانه لرم.

ـ ښه نو سمه ده، ورځه.

ـ د خدای په امان، خپلې روغتيا ته پام کوه!

ـ ولې نه! په مخه دې ښه الله جل جلاله دې مل شه!

# روغتيا لويه شتمني ده

## وقايه بهتره تر معالجې ده



## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار سره له ښوونکي څخه وروسته لوست په لوړ غږ ولولي او نور زده کوونکي دې ورته په غور سره غوږ ونيسي.

۲ـ دوه زده کوونکي دې د مرکې په څېر يو د بل حال وپوښتي.

۳ـ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې صفتونه په نښه کړي.

ـ د کوهي اوبه په دوبي کې يخې او په ژمي کې تودې وي.

ـ د ګلاب ګل سور او د نارنج ګل سپين رنګ لري.

٤ـ لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروئ.

ـ نيمګړی: ـ ټولنه:

ـ ټولنيز: ـ روغتون:

٥ـ د لاندې جملو تش ځايونه ډک کړئ:

ـ زکام هم يوه (                ) ناروغي کيدای شي.

ـ په ټولنيز ژوند کې يو د بل (                ) ته اړ يو.

٦ـ کوم ځواب سم دی؟

ـ اکبر په نس ناستي اخته و.

ـ اکبر په نري رنځ اخته و.

ـ د اکبر پښتورګو درد کاوه.

ـ اکبر په زکام اخته شوی و.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لس، لس کرښې يوه محاوره وليکي او په راتلونکي ساعت کې دې خپلو ټولګيوالو ته ولولي.

# متلونه



هره ژبه خپل ځانګړی ولسي ادب لري. متلونه هم د ولسي ادب یوه برخه ده. متلونه تقریباً د نړۍ په زیاترو ژبو کې شته. پښتو ژبه د شفاهي ادبیاتو له پلوه ډېره شتمنه ده. پښتو ژبه ډېر زیات متلونه لري؛ خو تر اوسه لا په بشپړ ډول نه دي راټول شوي.

- د متل په اړه مو څه زده دي؟
- د زرو قدر په زرګر وي، ویلای شئ چې دا څه ډول وینا ده؟

متل د ولسي ادب یوه مهمه څانګه ده چې د هر ولس په ګړني (شفاهي) ادب کې ځانګړی مقام لري.

متل هغه لنډه جمله ده چې د معنا له مخې بشپړه وي؛ خو له لنډوالي سره سره پکې د کتاب هومره معنا نغښتې وي. متل د استعارې او کنایې په ډول وي. د متل مفهوم ساده او د ټولو د پوهېدنې وړ وي. متل تل د یوې مدعا د پخلي (تایید) لپاره کارېږي. متل تر لوستو، نالوستو مشرانو ته ډېر یاد وي او نالوستي مشران او سپین ږیري یې ډېر کاروي. متل د پښتو لنډیو په څېر معلوم ویونکي نه لري. متل معمولاً د یوه هوښیار او حکیم عاقلانه وینا ((مقوله)) وي چې د یوه مقصد لپاره یې له خولې وتلې وي. دغه وینا بیا د لفظي ښکلا، مناسبت او معنوي افادې او ارزښت له امله د ولس پر ژبه جاري شوې او خوندي شوې وي.

متلونه دوه ډوله وي: منثور او منظوم. ځینې متلونه ځانته یوه کیسه هم لري، دا دی دلته یې څو بېلګې راوړو:

۱_ پوره! ورک دې کړل دوه کوره!

۲_ د زورورو اوبه مخ پورته ځي.

۳_ خپل عیب د ولیو منځ، د بل عیب د کلیو منځ.

٤_ له غرونو لوېدلی ښه دی، نه له زړونو.

٥_ آسمان چې څومره غورېږي، هغومره نه ورېږي.

٦_ له بارانه تښتېدم، ناوې ته کښېناستم.

۷_ د تورې زخم جوړېږي، خو د ژبې زخم نه جوړېږي.

۸_ مېړونه مري، خو نومونه یې پاتې کېږي.

۹_ د لمدو ختو لړې اوبه دارو دي.

۱۰_ ورور دې وي، په لاهور دې وي.

۱۱_ د مور زړه په اولاد؛ د اولاد زړه په کاڼي.

۱۲ـ مه کوه په چا چې وبه شي په تا.

۱۳ـ کوهی مه کنه د بل سړي په لارکې، چېرې ستا به د کوهي په غاړه لار شي.

۱٤ـ اوبه په ډانګ نه بېلېږي.

**د متن لنډيز:**

متلونه د شفاهي ادبیاتو یوه ځانګړې او مهمه برخه ده.متلونه د هر ولس په ولسي ادب کې مهم ځای لري او د همغه ولس د کلتور ښکارندويي کوي.

متلونه هغه له مطلبه ډکې لنډې او ګټورې خبرې دي چې لوی مفهوم پکې نغښتی وي. متلونه د موضوع د راسپړلو لپاره ویل کېږي، بحث ته لاره هواروي. په جرګو او مرکو کې د متل اهمیت تر بل هر ځای زيات وي.

متلونه د دې لپاره ویل کېږي چې ویونکی د مخامخ لوري قناعت حاصل کړي او خپله خبره پرې ومني.




کنایه: هغه کلمه ده چې معنا یې څه قدرې پټه وي او پر حقيقي معنا سربېره غیر حقیقي معنا هم ولري، لکه: سپېره: په خاورو ککړ او همدارنګه سپېره بد بخت او بد نصیب ته هم وايي.

استعاره: پټه خبره، ناڅرګنده خبره، پور کړی شوې کلمه، له بلې ژبې نه راغلې کلمه.



## فعالیتونه

۱_ زده کوونکي دې متن په لوړ غږ ولولي او بیا دې یې مفهوم په خپلو خبرو کې څرگند کړي.

۲_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

۱_ متل څه ته وایي؟

۲_ متلونه د ادب په کومې برخې پورې اړه لري؟

۳_ آیا منظوم متلونه هم شته؟

٤_ زده کوونکي دې په وار یو یو متل او د هغه مقصد دې پخپلو خبرو کې ووایي.

٥_ زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي او د سیالۍ په توگه دې یو بل ته له ځانه متلونه ووایي.

٦_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

اولاد ځانگړې مرکه جوگه ارزښت

۷_ زده کوونکي دې د لاندې متل په اړه په وار سره خبرې وکړي:

(مه کوه په چا چې وبه شي په تا)



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کورنۍ له غړو او یا هم له نورو مشرانو څخه پنځه، پنځه نور متلونه زده کړي او هغه دې سبا ته ټولگیوالو ته ووایي.

لسم لوست

# ځيرک قاضي



د نړۍ پر مخ ډېرې داسې رښتينې او جوړې شوې کيسې شته چې لوستل او اورېدل يې ډېر لوړ پيغام اوګټه لري. ډېرې روزنيزې کيسې شته چې زموږ د ژوندانه، اخلاقو، کړو وړو او عادتونو په سمون کې له موږ سره ډېره مرسته کوي.

- داسې کيسه مو اورېدلې چې د خپل ژوندانه د سمون لپاره مو ترې څه زده کړې وي؟
- تاسو د ځيرکتيا په اړه کومه کيسه اورېدلې ده؟

يوه زلمي يوه بوډا ته سل روپۍ ورکړې او په مسافرۍ لاړ. کله چې بېرته راستون شو، نو خپلې روپۍ يې ترې وغوښتې. بوډا منکر شو او ويې ويل چې تا خو ماته نه دي راکړې. آخر هغه زلمی قاضي ته لاړ او عرض يې وکړ.

قاضي بوډا راوغوښت او پوښتنه يې ترې وکړه چې تا ته دې زلمي روپۍ درکړې دي؟

هغه وويل:

قاضي صاحب خدايږو چې نه يې دي راکړي.

بيا قاضي زلمي ته وويل:

ستا په دې خبره کې څوک شاهد شته؟

هغه وويل چې هېڅوک شاهد نشته.

قاضي بوډا ته وويل:

ته قسم خورې چې تا ترې روپۍ نه دي اخيستې؟

په دې خبره زلمی په ژړا شو او ويې ويل:

- قاضي صاحبه ! دی قسم خوړلو ته هم تيار دی.

بيا قاضي وويل چې تا روپۍ په کوم ځای کې ورکړې؟

هغه وويل چې تر يوې ونې لاندې.

قاضي وويل: نو بيا ولې وايې چې شاهد نشته. هغه ونه ستا شاهده ده. هغې ونې ته لاړ شه او ورته ووايه چې قاضي غوښتې يې.

زلمي وويل:

قاضي صاحب زه وايم چې ګنې ونه به ستا په حکم را نشي.

قاضي وويل: زما مُهر يوسه او ونې ته ووايه چې دا د قاضي مُهر دی، نو بيا به هرو مرو راشي.

لنډه دا چې زلمي مُهر يوړ او لاړ. لږ ساعت وروسته قاضي له بوډا نه تپوس وکړ چې هغه زلمی به ونې ته رسېدلی وي؟

هغه وویل چې نه.

زلمی چې ونې ته ورسېد، نو د قاضي مهر یې وروښود او ورته یې وویل چې ته قاضي غوښتې یې. ډېرې چغې یې ورته ووهلې، خو ونې ځواب ورنه کړ. آخر هغه زهیر او نهیلی راغی او قاضي ته یې وویل:

قاضي صاحب ما ستا مُهر ونې ته وښود؛ خو هغې څه ځواب را نه کړ.

قاضي وویل چې هغه ونه دلته راغلې وه، شاهدي یې ورکړه او لاړه.

بوډا وویل:

قاضي صاحب دا څنګه چل دی؟ دلته، خو ونه نه ده راغلې!

قاضي وویل:

هو! ونه، خو نه ده راغلې؛ خو چې ما له تا نه تپوس وکړ چې هغه زلمی به ونې ته رسېدلی وي که نه؟ نو تا وویل چې نه، که چېرې تا تر هغې ونې لاندې روپۍ اخیستې نه وای، نو داسې دې ولې ونه ویل چې کومه ونه؟ ما، خو نه ده لیدلې، له دې نه معلومه شوه چې زلمی رښتیا وایي.

بوډا په دې خبره قانع شو او زلمي ته یې خپلې روپۍ ورکړې.

**د متن لنډیز:**

انسان باید تل رښتینی او صادق واوسي او په امانت کې خیانت ونه کړي. انسان باید د چا حق ونه خوري او په هر حال کې له الله ﷻ څخه وویرېږي. خپلمنځي ستونزې او شخړې باید د خبرو اترو له لارې حل کړي. قاضي او حاکم هم باید پوه او ځیرک وي. قاضي باید په بېلابېلو لارو چارو سره پلټنه وکړي او حقایق ومومي.

زده کوونکي دې دغسې کیسې ولولي. له کیسو نه دې عبرت واخلي. ښې کړنې دې خپلې کړي او له بدو کړنو نه دې ځانونه وساتي. د کیسو لوستل یوازې تفریح او ساعتیري نه ده، بلکې موږ ته په عملي ژوند کې د ښو کړنو لارښوونه هم کوي.



## فعالیتونه

زده کوونکي دې په وار سره کیسه په لوړ غږ ولولي او بیا دې د کیسې لنډ مفهوم په خپلو خبرو کې بیان کړي.

د لاندې لغتونو د لومړي کتار معناوې په دویم کتار کې پیدا کړئ او په خپلو کتابچو کې یې د کرښې په واسطه ونښلوئ!

| | |
|---|---|
| نهیلي | سپین ږیری |
| هرومرو | نا امېد |
| تپوس | پوښتنه |
| بوډا | خامخا |

ـ د لاندې لغتونو ضد پیدا کړئ او په کتابچو کې یې ولیکئ:

۱. شخړې
۲. صادق
۳. زلمی
٤. هېڅوک
۵. امانت

په متن کې راغلي لاندې لغتونه د ګرامر له مخې څه نومېږي؟ تعریف یې کړئ:

زلمی ـ بوډا ـ ونه ـ چېرې ـ ولې – څوک – ستا – زما

- لاندېني لغتونه لومړی معنا او بیا یې په جملو کې استعمال کړئ:

ستونزه ـ شخړه ـ پلټنه ـ ملاتړ.

- ښوونکی دې لاندېنی متن په لوړ غږ په دمه- دمه ولولي او زده کوونکي دې د املا په ډول په خپلو کتابچو کې ولیکي.

قاضي صاحبه! دی قسم خوړلو ته هم تیار دی.

بیا قاضي وویل چې تا پیسې په کوم ځای کې ورکړې؟
هغه وویل چې تر یوې ونې لاندې.
قاضي وویل: نو بیا ولې وایې چې شاهد نشته! هغه ونه ستا شاهده ده. هغې ونې ته لاړ شه او ورته ووایه چې قاضي غوښتې یې.
زلمي وویل:
قاضي صاحب زه وایم چې ګنې ونه به ستا په حکم را نشي.
قاضي وویل: زما مُهر یوسه او ونې ته ووایه چې دا د قاضي مهر دی، نو بیا به هرو مرو راشي.
لنډه دا چې زلمي مُهر یووړ، لږ ساعت وروسته قاضي له بوډا نه تپوس وکړ چې هغه زلمی به ونې ته رسېدلی وي؟
- که پورتنۍ کیسې ته ورته کومه کیسه د زده کوونکو زده وي، ټولګیوالو ته دې یې ووایي.

ـ په لاندې متن کې نومونه، صفتونه او ضمیرونه په نښه کړئ.
زلمی چې ونې ته ورسېد، نو د قاضي مُهر یې وروښود او ورته یې وویل چې ته قاضي غوښتې یې. ډېرې چغې یې ورته ووهلې، خو ونې ځواب ورنه کړ. آخر هغه زهیر او نهیلی راغی او قاضي ته یې وویل:
قاضي صاحب ما ستا مُهر ونې ته وښود؛ خو هغې څه ځواب را نه کړ.
قاضي وویل چې هغه ونه دلته راغلې وه، شاهدي یې ورکړه او لاړه.
بوډا وویل:
قاضي صاحب دا څنګه چل دی؟ دلته خو ونه نه ده راغلې!

ـ که د کوم زده کوونکي دې ته ورته کیسه زده وي د ټولګیوالو په وړاندې دې ووايي او نور زده کوونکي دې پرې خبرې وکړي.

ـ یو زده کوونکی دې د ټولګي په استازیتوب لاندې پراګراف د املاء په توګه ولولي او نور زده کوونکي دې ولیکي.

هو! ونه خو نه ده راغلې؛ خو چې ما له تا نه تپوس وکړ چې هغه زلمی به ونې ته رسېدلی وي که نه؟ نو تا وویل چې نه، که چېرې تا تر هغې ونې  لاندې روپۍ اخیستې نه وای، نو داسې دې ولې ونه ویل چې کومه ونه؟ ما خو نه ده لیدلې، له دې نه معلومه شوه چې زلمی رښتیا وايي.
بوډا په دې خبره قانع شو او  زلمي ته یې خپلې  روپۍ ورکړې.

ـ زده کوونکي دې د کیسو د لوستلو او اورېدلو په اړه خپل نظر ولیکي او د ټولګي په وړاندې دې په وار سره ولولي.




د پورتني لوست لنډ مفهوم په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې ټولګیوالو ته واوروئ.



یوولسم لوست

# د خپلواکۍ ورځ

خپلواکي د الله جل جلاله ډېر لوی نعمت دی، د ژوندانه ستره نېکمرغي ده. انسان آزاد پیدا شوی، نو ځکه له خپلواکۍ سره مینه لري. انسان ته خپلواك ژوند تر هر څه غوره ښکاري. آزادي په توره اخیستل کېږي؛ خو په پوهې او تدبیر سره ساتل کېږي. باتدبیره او پوه ملتونه هېڅکله د مریيتوب په دام کې نه ښکېلېږي. له مریيتوب څخه د ځان ژغورنې یوازینۍ لاره پوهه او علم دی.

- افغانانو څنګه له انګریزانو څخه خپلواکي ترلاسه کړه؟
- کله او د کوم پاچا په وخت کې د افغانستان خپلواکي اعلان شوه؟

افغانستان په آسیاکې لومړنی هېواد و چې د نړۍ د هغه وخت له ستر ځواک یا انګرېزانو څخه یې خپلواکي تر لاسه کړه. افغان ولس په اسیاکې د ازادۍ د اتل په توګه وپېژندل شو. نورو ولسونو ترې هم د ازادۍ الهام واخیست.

انګرېزانو درې ځله پر افغانستان یرغل کړی دی؛ خو افغانستان یې په بشپړ ډول اشغال نه کړای شو. د هغو له یرغل سره سم افغانانو د خپلواکۍ لپاره مبارزې پیل کړې. له انګرېزانو سره یې درې لویې جګړې وکړې؛ خو هیڅکله ښکېلاک ته تسلیم نه شول. پرله پسې سختو جنګونو دانګرېزانو پوځونه ښه وځپل. په ۱۲۹۸ هـ. ش. کال کې چې افغانانو د غازي امان الله خان په مشرۍ خپله سیاسي خپلواکي اعلان کړه؛ نو د زمري په (۲۸مه) نېټه انګرېزانو د افغانستان خپلواکي په رسمیت وپېژندله.

اوس هر کال د زمري اته ویشتمه د خپلواکۍ د جشن په توګه نمانځل کېږي. په دې ورځ د افغانستان په ټولو اداري واحدونو کې جشنونه جوړېږي. په ځانګړي ډول په پلازمېنه کې د لوی جشن ترتیبات نیول کېږي. په دې جشن کې دګڼو نندارچیانو په وړاندې پوځي پرېټونه ترسره کېږي. پر پوځ او پولېسو سربېره د ټولنې نورې پوړۍ، لکه: زده کوونکي، محصلین، لوبغاړي، اتڼچیان، بزګران او نور هم په خپل وار خپل هنر نندارچیانو ته وړاندې کوي. دوی ټول د لوڅ له مخې په ځانګړو مراسمو سره تېرېږي او خپلو هېوادوالو ته د درناوي مراتب وړاندې کوي.

د بلواکۍ پر ضد مبارزه د انسان په خټه کې اغږل شوې ده. له هېواد سره مینه، د خپلواکۍ او د آزاد ژوند احساس د افغان ولس ستره ځانګړنه ده. فضل احمد خان غر افغان وایي:

واورئ ای په مخ د ځمکې اوسېدونکو
له اسمـــانه چې اواز راځي د څـه دی! ؟
د ازاد ژوند یو ســـــاعت په حقیقت کې
د غـــــلام د همېشه ژوندون نه ښه دی

نومیالی لیکوال، سیاستوال او شاعر شهید موسیٰ شفیق بیا وایي:

عشق د خپلواکۍ مې په سینه کې په هاها وي تل

پاک مې احســـاسات دي ازادي مې تمنا وي تل

خــیر د بشر غـــوارم امنیت مې تـقاضـا وي تل

مــاسره چې نښـــلي بدبختي د هغه چا وي تل

سید شمس الدین مجروح بیا بلوسګر ګواښي او خپل غرور داسې څرګندوي:

تېټ مې مه بوله غورځنګ راباندې مه کړه

زه په دې افتـادګـــــۍ کـې لوی ګـرځنګ یم

**د متن لنډیز:**

خپلواکي او آزادي د الله ﷻ لوی نعمت دی. د ژوندانه یوه ستره نېکمرغي ده. هر ژوک او هر شی د آزادۍ حق لري؛ انسان لا څه چې مرغان او حیوانات هم د آزادۍ حق لري. افغانانو د خپلواکۍ د بېرته اخیستلو په مبارزه کې له انګرېزانو سره درې لویې جګړې وکړې. په ۱۲۹۸ هـ. ش. کې یې د زمري په اته ویشتمه د غازي امان الله خان د واکمنۍ په دوره کې خپله سیاسي خپلواکي بېرته تر لاسه کړه.




شهید محمد موسی شفیق:

محمد موسی شفیق د مولوي محمد ابراهیم زوی، د ۱۳۰۸ لمریز کال د غبرګولي په پنځمه نېټه په کابل ښار کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې په کامې ولسوالۍ او کابل ښار کې کړې دي. وروسته د جلال آباد د هډې په نجم المدارس کې شامل شو او له هغه ځایه بیا د کابل عربي دارالعلوم ته لاړ. تر فراغت وروسته لومړی ځل په شاهي دارالتحریر کې مامور شو. تر څه مودې ماموریت وروسته د پوهنې وزارت له خوا د لوړو زده کړو

لپاره مصر ته ولېږل شو. په مصر کې يې د لسانس او ماسټرۍ زده کړې ترسره کړې، بيا په پرتليزو حقوقو کې د ماسټرۍ اخيستو لپاره امريکا ته لاړ. کله چې بېرته راستون شو د کابل پوهنتون په حقوقو پوهنځي کې د استادۍ په سپېڅلې دندې بوخت شو. شهيد موسى شفيق په دولت کې بېلابېلې دندې ترسره کړې دي چې ځينې مهمې يې دادي: سفارتونه، د بهرنيو چارو د وزارت مشاوريت، د بهرنيو چارو وزارت، د عدليې په وزارت کې بېلابېلې دندې او د عدليې وزارت تر معينيت وروسته د هېواد صدر اعظم وټاکل شو. په ۱۳۵۷ لمريز کال کې له نورو لوړ پوړو چارواکو سره يو ځای ونيول شو او په شهادت ورسول شو.

آثار يې دادي:

عبقريان (د کيسو ټولگه)، پيغام (شعري ټولگه)، د ننگرهار شاعران ادبي تذکره.

## سيد شمس الدين مجروح:

سيد شمس الدين مجروح د سيد حضرت شاه زوی په ۱۲۸۹ ل کال د کونړ د ولايت د شينکوړک په کلي کې زېږېدلی. تحصيلات يې په ديني علومو او فارسي ژبه کې په خصوصي توگه پای ته رسولي.

په دولتي چارو کې د نورو دندو تر څنگ تر وزارت پورې رسېدلی دی، زيات شمېر آثار ترې پاتې دي. شعري مجموعې يې (منتخب شعرونه) او (ياد فرياد) خپرې شوي دي.

## فضل احمد خان غر:

ابو سعد فضل احمد خان د حضرت عبدالله زوی، په ۱۷۹۹م کال د پېښور د مردان د سرډېر په کلي کې زېږېدلی دی. نوموړی يو تکړه شاعر او د کلاسيک سبک پيرو ښکاري، شعرونه يې وطني، اصلاحي او انتقادي رنگ لري. قومي ترانه او (د غره گل) يې غوره ليکنې دي. د شعرونو مجموعه يې د (غره گلونه) په نامه چاپ شوې ده.




۱ــ زده کوونکي دې تر ښوونکي وروسته متن وار په وار ولولي او د آزادۍ کیسې پر مفهوم دې ټولګیوالو ته خبرې وکړي.

۲ــ زده کوونکي دې په متن کې د راغلو شعرونو معنا په خپلو کتابچو کې ولیکي او په ټولګي کې دې یې واوروي.

۳ــ زده کوونکي دې د (الف) کتار د لغتونو مترادف په (ب) کتار کې پیدا او د کرښې په واسطه دې په کتابچو کې تر لیکنې وروسته ونښلوي:

| (الف) | (ب) |
|---|---|
| خپلواکي | غلام |
| آبادي | آزادي |
| بلواکي | غلامي |
| قرباني | سرښندنه |
| مریی | رغاونه |

٤ــ افغانانو ولې درې ځلې له انګریزانو سره جګړې وکړې؟

٥ــ په متن کې ستاینومونه (صفتونه) په نښه کړئ.

لاندینی متن ولولئ:

اوس هر کال د زمري اته ویشتمه د خپلواکۍ د ورځې په توګه د جشن په ډول لمانځل کېږي. په دې ورځ د افغانستان په ټولو ادارو کې جشنونه جوړېږي. په ځانګړي ډول په پلازمېنه کې د لوی جشن ترتیبات نیول کېږي. په دې جشن کې د ګڼو نندارچیانو په وړاندې پوځې

پرېښوونه ترسره کېږي. پر پوځ او پولېسو سربېره د ټولنې نور وګړي، لکه: زده کوونکي، محصلین، لوبغاړي، اتڼچیان، بزګران او نور هم په خپل وار خپل هنر ننداراچیانو ته وړاندې کوي. دوی ټول د لوږ له مخې په ځانګړو مراسمو سره تېرېږي او خپلو هېوادوالو ته د درناوي مراتب وړاندې کوي.

٦ـ په پورتني متن کې شپږ عام نومونه پیدا او په کتابچو کې یې په جملو کې وکاروئ.

٧ـ زده کوونکي دې په لاندې شعر خبرې وکړي او د شعر پیغام دې په خپلو خبرو کې وړاندې کړي.

واورئ ای په مخ د ځمکې اوسېدونکو
له اسمـــانه چې اواز راځـي د څـه دی! ؟
د ازاد ژوند یو ســـــاعت په حقیقت کې
د غـــــــلام د همېشه ژوندون نه ښه دی



## کورنۍ دنده

د خپلواکۍ د جګړې په اړه یولنډ مطلب ولیکئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې په ټولګي کې واوروئ.

دولسم لوست

# اخترونه



هر ملت د خپلې عقيدې له مخې د خوشحالۍ ځينې ځانګړې ورځې لري. زموږ هېوادوال او ټول مسلمانان په کال کې دوه مذهبي خوشحالۍ لري چې اخترونه ورته وايي. اختر د خوښۍ او نېکمرغۍ د ښکارندويۍ په معنا دی. په اخترونو کې خلک يو بل ته د ورورۍ او خوشحالۍ غېږې ورکوي.

- مسلمانان څو اخترونه لري؟
- دغه اخترونه په کومو مياشتو کې وي؟

مسلمانان دوه مذهبي خوشحالۍ لري چې اخترونه يې بولي. لومړي ته کوچنی اختر او دويم ته لوی اختر وايي. کوچنی اختر د روژې د مبارکې مياشتې تر تېرېدو وروسته د شوال په لومړۍ نېټه وي. د روژې مياشت ۲۹ يا ۳۰ ورځې وي.

مسلمانان د شوال په لومړۍ ورځ د کوچني اختر ورځ لمانځي. د اختر د لمانځه تر اداکولو دمخه د (صدقة الفطر) ورکول واجب دي. هر مسلمان چې وس ولري، هرو مرو به د فطر صدقه ورکوي. دا د مسکينانو او بېوزلو مسلمانانو حق دی. په چا چې (صدقة الفطر) ورکول واجب وي، هغه دغه صدقه نشي اخيستلای.

که څوک توان ولري؛ نو د اختر لپاره ترتيبات نيسي. خلک په اخترونو کې نوې جامې کوي او نوي بوټان يا څپلۍ پېري. کېک، کولچې، وچه مېوه او نور د کوچني اختر خوراکي توکي دي. د اختر په ورځ نوې جامې اغوستل، د عطرو کارول، ستر ګې تورول او ځان سينګارول سنت دي.

د اختر په ورځ غسل يا ځان مينځل واجب دي. د اختر په ورځ په امام پسې دوه رکعته لمونځ اداکول او د خطبې اورېدل هم واجب دي.

د اختر په ورځ ټول مسلمانان خاښت مهال جومات يا عيدګاه ته ځي او د اختر لمونځ په امام پسې اداکوي. د خطبې تر اورېدو وروسته بيا يو د بل کورونو ته ځي. مسلمانان په دې ورځ يو بل ته ور تر غاړېوځي او د اختر مبارکي ورکوي. مسلمانان په دې ورځو کې په ځانګړو الفاظو يو بل ته د عبادتونو د قبلېدو دعا کوي. مېلمانه په هر کور کې هرومرو څه خواږه خوري.

په مسلمانانو او په ځانګړي ډول په افغانانو کې دا دود دی چې د اخترونو په ورځ ډېر مرور کسان سره پخلا کېږي او يو بل ته ښښنه کوي.

د کوچني اختر خوښۍ زموږ په هېواد کې په رواجي ډول درې ورځې لمانځل کېږي. د دې خوښيو لپاره خلک له لېرې لېرې ځايونو آن له نورو هېوادونو څخه کورونو ته راځي. مسلمانان هڅه کوي چې له خپلې کورنۍ او خپلوانو سره يو ځای د اختر خوښۍ تېرې کړي.

د اختر په ورځو کې د افغانستان په ډېرو سيمو کې مېلې جوړېږي. په دغو مېلو کې ډول، ډول لوبې او سيالۍ تر سره کېږي. ځينې هنرمندان د نندارچيانو په وړاندې خپل هنري فعاليتونه ترسره کوي او خلک خوښ ساتي.

په کوچني اختر کې هر څوک له خپل توان سره سم د ځان او مېلمنو د خوراک لپاره وچه

مېوه، لکه: بادام، پسته، چارمغز، توتان، ممیز، نخود، همدارنگه کیک، کولچې، متیاڼ، جلبۍ، چاکلیټ، پتاسې او داسې نور خواړه اخلي.

تر کوچني اختره دوې میاشتې او نهه ورځې وروسته د ذوالحجې دمیاشتې په لسمه د لوی اختر ورځ وي. د لوی اختر لپاره هم خلک نوې جامې او د اختر د خوښیو نمانځلو لپاره تیارۍ کوي. که څوک توان ولري د قربانۍ لپاره څاروی اخلي. څوک چې توان لري په لوی اختر کې پرې قرباني کول واجب دي.

کله چې څاښت مهال د اختر لمونځ ادا او خطبه واورېدل شي؛ نو د قربانۍ لپاره تیار کړي څاروي حلالېږي. د قربانۍ غوښې درې برخې کېږي، یوه برخه د خپلوانو، دویمه برخه د مسکینانو او درېیمه یې په خپله اخلي. په دې اختر کې هم افغانان یو د بل کره ورځي او یو بل ته مبارکۍ ورکوي.

په لوی اختر کې هم د کوچني اختر په څېر مېلې جوړېږي. په مېلو کې لوبې او سیالۍ تر سره کېږي، ټالونه اچول کېږي او کوچنیان پکې زانګي. د دې اختر خوښۍ او نمانځنې هم درې ورځې وي.

**د متن لنډیز:**

کوچنی او لوی اختر د مسلمانانو د خوشحالۍ ورځې دي. اسلام هم د دغو ورځو د لمانځلو امر کړی دی. موږ باید دغه مبارکې ورځې په ډېر ښه شان سره ولمانځو، لکه چې په اخترونو کې ترېګنۍ او خپګانونه هېروو. باید همدغسې یې په ټول عمر کې هېر کړو. موږ افغانان باید یو بل ته د وروری لاسونه ورکړو. موږ باید یو له بل سره مرسته وکړو او د سولې او ورورولۍ په فضا کې ژوند تېر کړو.



## څرګندوني

صدقة الفطر: په پښتو کې ورته سرسایه وایي.



## فعالیتونه

لاندېنیو پوښتنو ته لنډ ځوابونه ووایاست:

۱_ مسلمانان په کال کې څو اخترونه لري؟ او نومونه یې کوم دي؟

۲_ کوچنی اختر په کومه میاشت کې وي؟

۳_ لوی اختر په کومه میاشت کې وي؟

٤_ کوچنی او لوی اختر څه توپیر لري؟

٥_ هره لاندېنۍ کلمه په خپلو کتابچو کې په یوه، یوه جمله کې استعمال کړئ:

هغه دغه چا څوک ته

٦_ لاندې پوښتنه ولولئ او سم ځواب په نښه کړئ:

(صدقة الفطر) په کوم وخت کې ورکول کېږي؟

الف: په لوی اختر کې تر لمانځه وروسته

ب: په لوی اختر کې تر لمانځه دمخه

ج: په کوچني اختر کې تر لمانځه دمخه

۷_ لاندېني لغتونه معنا او په جملو کې استعمال کړئ!

څاښت، څنګل، تړال، سیالی، پخلا.



## کورنۍ دنده

ستاسو په کلي کې اختر څنګه لمانځل کېږي؟ په دې اړه لس، لس کرښې ولیکئ، په سبا یې ټولګي ته راوړئ. ښوونکی دې په انتخابي ډول سبا ته د پنځو تنو لیکنې نورو زده کوونکو ته ورکړي او هغوی دې د ټولګي په وړاندې ولولي.



دیارلسم لوست

# د افغانستان مېوې



زموږ د ګران هېواد افغانستان په بېلابېلو سيمو کې ډول، ډول مېوې پيداکېږي. دا مېوې ځانته بېلا بېل رنګونه او خوندونه لري.

افغانستان د مېوو له امله مشهور دی. ځينې مېوې يې په بهرنيو هېوادونو کې هم ځانګړې شهرت لري. هر کال يوه اندازه بېلا بېلې مېوې بهرنيو هېوادونو ته استول کېږي. د دغو مېوو صادرات د هېواد د اقتصاد په پياوړتيا کې مهمه ونډه لري.

دا دی دلته تاسو ته د هېواد مشهورې مېوې درپېژنو.

- کومې مېوې هم وچې او هم تازه خوړل کېږي؟
- هغه کومې مېوې دي چې تاسو يې نومونه اورېدلي، خو خوړلي او ليدلي مو نه دي؟

زموږ ګران هېواد افغانستان پر نورو بې شمېره مېوو سربېره یو شمېر داسې مېوې لري چې ساری یې په نړۍ کې نشته. دغه مېوې دومره خوږې او خوندورې دي چې سیمه ییز او نړیوال شهرت لري. په هېواد کې دننه او له هېواد نه بهر بې کچه خوښوونکي او پېرودونکي لري. له همدې امله یوه اندازه مېوې بهرنیو هېوادونو ته هم لېږدول کېږي چې پر اقتصادي پیاوړتیا سربېره زموږ د هېواد په نړیوال شهرت کې هم ونډه لري.

له دغو مېوو څخه انار، انګور، مڼې، بادام، زردالو، پسته، شفتالو، ناک، توتان، غوزان، بهي، الوبالو، ګیلاس، الوچې، خټکي او هندوانې د یادونې وړ دي.

یو ډول نورې مېوې هم شته چې زموږ هېواد په خاصو سیمو کې په مني او ژمي کې پیدا کېږي. له دغو مېوو څخه مالټې، نارنج، ترنج، لوکاټ، امروت، تور املوک، زیړ املوک په ننګرهار او خوست کې پیدا کېږي.

د افغانستان یو شمېر تازه مېوې بهرنیو هېوادونو ته هم لېږل کېږي. په دغو مېوو کې خټکي، هندوانې، انګور، انار، چارمغز، بادام او پستې د یادونې وړ دي.

په وچو مېوو کې بادام، چارمغز، کشمش، پستې او جلغوزي یادولای شو، دغه مېوې د افغانستان شاوخوا هېوادو، امریکا، اروپا او زیاته برخه یې د خلیج هېوادونو ته لېږل کېږي.

پسته: پسته ډېر ډولونه لري چې د هرات، بادغیس، بغلان، کندوز، تخار او یو شمېر نورو سیمو په غرونو کې موندل کېږي.

بادام: بادام د افغانستان په شمالي ولایتونو کې، لکه: بغلان، کندوز، سمنګان، تخار، بلخ، شبرغان، فاریاب او نورو کې پیداکېږي او زیات ډولونه لري چې کاغذي پکې ډېر شهرت لري او د بیې له پلوه هم تر نورو بادامو لوړه بیه لري.

انار: انار تقریباً د هېواد په ټولو سیمو کې شته، خو د پام وړ سیمې یې کندهار، تګاب او تاشقرغان دي. د دغو سیمو انار د نورو سیمو تر انارو زیات شهرت لري.

انګور: انګور هم د هېواد په ډېرو برخو کې شته، خو په کندهار، هرات، پروان او کندوز کې د یادونې وړ ډولونه لري.

مڼې: مڼې هم زموږ د هېواد په ډېرو سیمو کې څه ناڅه شته، خو تر ټولو ښې او غوره یې دمیدان وردګ، د کابل د شاوخوا او لوګر مڼې دي چې ببروتي یا وکیل خاني، مارلنګ،

ګولډن او نازک بدن یې خورا غوره ډولونه دي.

جلغوزي: جلغوزې په پکتیا او پکتیکا کې شته او لوی، لوی ځنګلونه لري. د کورنیو جګړو په اوږدو کې یې زیانونه لیدلي. ونې یې پرې شوي او په حاصلاتوکې یې کموالی راغلی.

خټکي: خټکي د افغانستان په ډېرو برخو کې شته، خو د هېواد په شمالي سیمو کې یې تر ټولو غوره او ښه ډولونه کرل کېږي. زیات او ښه ډولونه یې په کندوز، بلخ، سمنګان، بغلان او تخار کې پیدا کېږي.

د خټکیو ډولونه په هره سیمه کې څه ناڅه توپیر لري. یوازې په کندوز کې یې تر پنځه ویشتو زیات ډولونه شته چې تر ټولو ښه، خواږه او مشهور یې عسقلاني، غازیخاني او قندك دي. د خټکیو په ډولونو کې یو ډول ځانګړی نسل چې (ارکاني) ورته وايي، تر نورو خټکیو زیات عمر لري، ځکه چې پوستکی یې پرېړ او کلك دی او ان تر دې چې د کال تر پایه پورې هم ساتل کېږي.

هندوانې هم زموږ د هېواد په ختیځو، جنوبي او شمالي ولایتونو کې زیاتې دي او ښه ډولونه یې پیدا کېږي. د بغلان ولایت د کیله ګي، هلمند او د کندوز د امام صاحب او چار درې هندوانې تر نورو غوره او لویې دي.

غوزان: دا مېوه هم د هېواد په اکثرو سیمو کې پیداکېږي او مختلف ډولونه لري. ښه ډول یې کاغذي غوزان بولي چې په کونړ، نورستان، بدخشان او د افغانستان په نورو سیمو کې هم موندل کېږي چې بهرنیو هېوادونو ته هم لېږل کېږي.

**د متن لنډیز:**

که څه هم افغانستان یو غرنی هېواد دی، خو د حاصلاتو له پلوه ډېر زیات بډای او شتمن دی. هر ډول حاصلات لري چې ډولونه یې سلګونو ته رسېږي. دغه حاصلات نه یوازې دا چې زموږ د خلکو د اړتیا وړ توکي برابروي، بلکې یوه برخه یې د صادراتو په توګه بهر ته هم لېږل کېږي. له دغو حاصلاتو څخه یو هم مېوې دي چې زښت زیات ډولونه لري. دغه مېوې تازه او وچې خوړل کېږي او زموږ د هېواد په پانګه او پېژندګلوی کې لویه ونډه لري.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لوست په وار سره په لوړ آواز ولولي او نور زده کوونکي دې غوږ ورته ونیسي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره د یوې، یوې مېوې نوم واخلي.

۳ـ زده کوونکي دې د هغو مېوو نومونه واخلي چې بهر ته لېږل کېږي.

٤ـ یو شمېر زده کوونکي دې په وار سره له متن څخه دوه، دوه صفتونه په ګوته کړي او یو شمېر نور دې دوه دوه خاص نومونه او دوه، دوه عام نومونه ووایي.

٥ـ لاندې تش ځایونه ډک کړئ؟

ـ د هېواد مشهور انار په (                    ) کې پیدا کېږي.

ـ زموږ د هېواد یو شمېر مېوې، لکه (                    ) بهر ته هم لېږل کېږي.

٦ـ سم ځواب په نښه کړئ:

جلغوزي:

الف: په کندهار کې پیداکېږي.　ب: په بغلان کې پیداکېږي.

ج: په لوګر کې پیداکېږي.　د: په پکتیا او پکتیکا کې پیدا کېږي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د هېواد د مشهورو مېوو نومونه او ځایونه په کتابچو کې ولیکي او په راتلونکي ساعت کې دې ټولګیوالو ته واوروي.

# دعائیه شعر



په ټولیزه توګه کلام یا خبرې کول په دوه ډوله دي: نثر او نظم. نظم هغه سنجول شوی کلام دی چې وزن او قافیه ولري. نظم د مختلفو واقعاتو په اړه ویل کیږي او ډول، ډول واقعات پکې راتلای شي. نظم او نثر دواړه د یوه ولس د ادب مهمې برخې دي او د همغه ولس د هویت څرګندونه کوي. په کومه ژبه چې خلک خبرې کوي نثر یې بولي خو شاعران د نظم په ژبه غږیږي. دا دی دلته د عبدالحمید مومند ماشوخیل هغه شعر راوړو چې هغه پکې له لوی الله ﷻ نه غوښتي دي چې سمې لارې ته یې لارښوونه وکړي، صبر، زغم، قناعت او سکون ورپه برخه کړي.

- تاسو د عبدالحمیدمومند نوم اوریدلی او په اړه یې څه معلومات لرئ؟
- عبدالحمید مومند څه ډول شاعر او د کومو آثارو خاوند دی؟

قناعت راته عطا کړې زمـــا ربــــه
ورك زما حـــرص و هوا کړې زما ربه

دا سرکښ نس مې سرکوزی کړې په صبر
راته ایلـه دا بـــلا کـــــړې زمـــا ربـه

چې دې نوم په غوږرو، واورم سره لمبه شم
هسې ســـوز را کې پیدا کـــړې زما ربه

چې مې نشي اضطـراب د چـــا په ظلم
هــومره صبر و سکون راکړې زمــــا ربه

نــــور مې وساتې زبان لــــه پوچ گویی
په خپل وصف مې گویا کړې زمـــا ربه

دم قـــدم زمـــــــا سیـــده لرې په شرع
له لـغـزشـــه مې نجـــا کړې زمـــا ربه

که رضا د ستـــا د سر او په مـــال مومم
ژر مې ســـازه دا سودا کړې زمـــــا ربه

چې حضرت راوړی دین دی زما دین دی
کـــــه مې مــــر په دا وینا کړي زما ربه

هرچې ستا، ستا د رسول پکې مرضي وي
هغه کار شـــغل زمـــا کـــړې زمـا ربه

د رسول په پاك وجود مې ستـا قسم دی
چې قبـــوله دا دعـــا کـــړې زمــــا ربـه

که حمید خطا دعا کا په غفلت کې
دا خطا دعـــا رسا کړې زمـــــا ربه

د عبدالحمید کلیات

## د عبدالحمید مومند لنډه پېژندنه:

د پښتو ژبې پیاوړی او نومیالی شاعر عبدالحمید بابا په خټه مومند دی. د نوموړي د زېږېدو او مړینې جوتې نېټې نه دي معلومې، خو ژوند يې تر ۱۱٤۸ هـ ق کال پورې يقيني ثابت شوی دی. نوموړی د پېښور په ماشوکگر کې زېږېدلی دی.

عبدالحمید بابا د شعرونو يو ديوان لري چې په (دُرو مرجان) مشهور دی او تراوسه څو څو ځله چاپ او خپور شوی دی. د هغه په کلام کې رنګين خيالي او هنري ښکلا له ورايه برېښي، ځکه خو ورته د موشګاف لقب هم ورکړی شوی دی. د نوموړي نور آثار نيرنګ عشق، شاه و ګدا، شرعة الاسلام او نور دي.

د حمید بابا مزار د ماشوکگر په هغه لويه هديره کې دی چې د کلي ترخنګ د خوړ پر غاړه جوړه شوې ده.

## د متن لنډيز:

عبدالحمید مومند په خپل کلام کې خپل رب ته د دعا لاسونه پورته کوي او له هغه څخه غواړي چې د حرص اوهوا ماده يې له وجوده وباسي او د قناعت برخه وروبښي.
عبدالحمید بابا له خدايه غواړي چې د ظلم په مقابل کې د صبر او سکون طاقت ورکړي او په سمه لار يې برابر کړي. حمید بابا خپل الله جَلّجَلالُه ته دا وعده ورکوي چې زه به د حضرت محمد (ص) په دين ټينګ ولاړ او د هغه پر غوره لار به روان يم. په آخر کې وايي چې که حميد په دعا کې غلفت کړی وي، نو ته يې دا خطا رسا کړې او ويې بښې. د حمید بابا د شعر دا بيتونه د هغه د ټول شعر لنډيز بللی شو.

نور مې وساتې زبان له پوچ ګويي
په خپل وصف مې ګويا کړې زما ربه
دم قدم زما سيده لري په شرع
له لغزشه مې نجا کړې زما ربه



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لوست له ښوونکي څخه وروسته په وار سره په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره له متن څخه یو، یو شعر معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په سمو جملوکې وکاروي.

| | |
|---|---|
| ۱- قناعت | ۲- اضطراب |
| ۳- وصف | ٤- شغل |
| ٥- ایل | ٦- عطا |

ـ زده کوونکي دې د شعر مفهوم په خو جملوکې ولیکي او د خپلو ټولګیوالو په مخکې دې ووایي.

٤ـ زده کوونکي دې په لوست کې نومځري په نښه او په کتابچوکې دې ولیکي.

٥ـ زده کوونکي دې دا بیت معنا کړي:

قناعت راته عطا کړې زما ربه

ورک زما حرص و هوا کړې زما ربه

٦ـ له متن څخه خاص نومونه په نښه کړئ او خپلو ملګرو ته یې ووایاست.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورکې دغه شعر ته ورته بل شعر په کتابچوکې ولیکي او په بله ورځ دې شعر او د هغه مفهوم په ټولګي کې واوروي.



پنځلسم لوست

# د سګرټو زیانونه



اپین، چرس، شراب، هېرویین، نسوار، سګرټ او ځینې نور نشه یي توکي (مخدره مواد) بلل کېږي. د نشه یي توکو تولیدول او کارول د اسلام سپېڅلي دین منع کړي دي. مسلمانان باید د اسلام په لارښوونو عمل وکړي، د هر ډول نشه یي توکو له تولید، کارولو او سوداګرۍ څخه ځان وساتي. سګرټ او نسوار دواړه نشه یي توکي دي، خو له بده مرغه زموږ په ټولنه کې یو شمېر وګړي په دې نشه روږدي دي. په دې لوست کې یې په زیانونو غږېږو.

- ولې د نشه یي توکو استعمالول حرام دي؟
- پوهېږئ چې سګرټ څکول بدن ته کوم زیانونه رسوي؟

سگرټ او نسوار دواړه له تنباکو څخه جوړېږي. تنباکو یو ډول مواد لري چې نېکوتین نومېږي. نېکوتین داسې شیز دی چې د انسان د روږدېدا لامل گرځي. سگرټ او نسوار دواړه نشه یي توکي دي. له بده مرغه چې زموږ په هېواد کې ډېر وگړي په سگرټ څکولو او نسوارو کولو روږدي دي. سگرټ څکوونکي هم خپل ځان ته او هم خپلې کورنۍ او ټولنې ته روغتیایي او اقتصادي زیان رسوي. په موټرو، دوکانونو، هوټلونو، دفترونو، پارکونو او نورو عامو ځایونو کې سگرټ څکول ډېر ستر اخلاقي جرم او فساد دی. د سگرټ لوگی نورو وگړو ته هماغومره زیان رسوي، څومره چې یې څکوونکي ته رسوي.

د سگرټو څکول یا یې د لوگي تنفس کول لاندینۍ ستونزې زېږوي:

ــ خوله بدبویه کوي،

ــ غاښونه خرابوي او رنگ یې ژېړوي،

ــ سږي خرابوي، د لوگي ذرات په تنفسي نلونو کې راغونډېږي او انسان ته نفس تنگي یا ساه بندي پیدا کېږي،

ــ د سترگو د لیدو ځواک کموي،

ــ معده خرابوي او اشتها کموي،

ــ د وریو او شونډو طبیعي رنگ خرابوي او ورۍ شنې کوي،

ــ عمر راکموي،

وېښتان رژوي،

بدن ستړی او سستوي.

سگرټ څکول پر دغو ستونزو سربېره د وریو، سږو، معدې، ستوني او نورو غړیو د

خطري او نه درملېدونکو سرطاني ناروغيو لامل هم گرځي. همدارنگه د دماغي سکتې، د زړه حملې او نورې ناروغۍ هم رامنځته کوي.

پر سگرټو د روږدېدنې په اړه د ارواپوهانو او ډاکټرانو نظر دا دی چې سگرټيانو ته له اروايي پلوه دا کار په لومړي سر کې د ځان ښودنې او وياړ عمل ښکاري او وروسته پرې روږدي شي.

نشه يي توکي او نشه زموږ گډ دښمن دی. مخکې له مخکې بايد د دې دښمن مخه ونيسو. دې دښمن ته بايد دومره مهلت ورنه کړو چې موږ د ژوندانه له خواږه نعمت څخه بې برخې کړي.

## د متن لنډيز:

اسلام ټول نشه يي توکي توليدول او کارول حرام کړي دي. لامل يې دا دی چې هم روږدي او هم ټولنې ته مالي او ځاني زيان رسوي. د ټولنې هر وگړی بايد د دې کرغېړن عمل مخنيوی وکړي. موږ بايد هڅه وکړو چې خپله ټولنه له دې بدمرغۍ څخه خلاصه کړو. دا کار به ددې لامل شي چې موږ يو ځل بيا نړيوال اعتماد لاسته راوړو.



## فعالیتونه

ـ زده کوونکي دې د متن یو، یو پاراګراف په وار سره ولولي.
ـ څو تنه زده کوونکي دې د سګرټو په زیانونو لنډې، لنډې خبرې وکړي.
لاندې جمله ولولئ او سم ځواب په نښه کړئ:
سګرټ څکول:
الف- انسان چاغوي
ب- اشتها زیاتوي
د- د ډول ډول ناروغیو لامل ګرځي
لاندیني لغتونه د کتاب د پای وییپانګې په مرسته معنا کړئ:

| ویاړ | لامل | روږدی | |
|---|---|---|---|
| ستونی | روغتیا | کرغېړن | |
| بدمرغي | اوری | سږي | هڅه |

ـ تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:
سګرټ څکول............... دي او اسلام ترې مسلمانان............... کړي دي.
ـ په لاندیني متن کې کومې (ی) ګانې راغلي، نومونه يې وښایاست او هره یوه په یوه جمله کې وکاروئ:
سګرټ او نسوار دواړه له تنباکو څخه جوړېږي، تنباکو یو ډول مواد لري چې نیکوتین نومېږي.
نیکوتین داسې څیز دی چې د انسان د روږدېدا لامل ګرځي.



## کورنۍ دنده

په لوست کې عام او خاص نومونه پیدا او په کتابچو کې يې په جملو کې استعمال کړئ او په بل پښتو درسي ساعت کې يې خپلو ټولګیوالو ته ولولئ.



شپاړسم لوست

# پښتو غزل



د هرې ژبې ادبیات خپل تاریخي بهیر لري. ځینې ادبي ډولونه یې خپل وي او ځینې له نورو ځخه اخلي. غزل هم یو شعري ډول دی چې له عربي ځخه پښتو او دري ته راغلی دی. غزل په پښتو ادبیاتو کې هم خپل پرمختیايي پړاوونه وهلي دي. له څو پېړیو راهیسې په پښتو شاعرۍ کې غزل شته او خورا ښه پرمختګ یې کړی دی.

- په پښتو کې تر لاسه شوی لومړنی غزل د چا دی؟
- په معاصره دوره کې د پښتو غزل د (بابا) لقب چاګټلی دی؟

غزل هغه شعر ته وایي چې د لومړني بیت دواړه نیم بیتي یې سره هموزنه او هم قافیه وي. د نورو بیتونو د دویم نیم بیتي قافیه باید له لومړني بیت سره برابره وي، خو د ټولو وزن باید سره یو ډول وي.

غزل له پنځو بیتونو څخه تر پنځلسو بیتونو پورې وي. اوس زیاتره شاعران هڅه کوي چې د غزل د بیتونو شمېر یې تر نهو زیات نشي. غزل پخوا غنایي او عشقي مضامین درلودل، خو اوس هر ډول مضامین رانغاړي. د پښتو ژبې په ادبي ډولونو کې غزل له لرغونې دورې څخه تر معاصرې دورې پورې یو مهم ډول دی. غزل په پښتو ادب تاریخ کې بېلابېل پړاوونه وهلي دي. په هر پړاو کې پکې ژبني، هنري او د مضامینو له پلوه تغییرات راغلي دي.

په پښتو ژبه کې لومړنی ترلاسه شوی غزل د اکبر زمینداوري دی. اکبر د زمینداور اوسېدونکی او د پښتو ادبیاتو د لرغونې دورې یو نامتو شاعر دی. د اکبر زمینداوري د ژوندانه زمانه د ۷۵۰ هجري قمري کال شاوخوا اټکلولای شو. د غزل بېلګه یې دا ده:

| | |
|---|---|
| د خپل ځان له حیرانیه څه ویل کړم | د عشق ویر به تل پخپله پټول کړم |
| ما مدام لکه بورا په ګلو ګشت کړ | اوس به ځم په سرتور سر فراق د ګل کړم |
| د غماز لړمون به زه په لمبه کښېږدم | ځنې هېر به د یار بزم ګل او مل کړم |
| زما دیار د مینې اور په زړه کې بل دی | زه به سر و مال ښندم دید به حاصل کړم |

د بېلتون له اوره ژاړم اوښکې وینې
زه اکبر پخپل اشنا د سر ښندل کړم

په لرغونې دوره کې شيخ محمد صالح، زرغونې کاکړې، علي سرور لودي او ځينو نورو شاعرانو هم د غزل په چوکاټ کې شعرونه ويلي دي.

د پښتو ادبياتو تاريخ له مخې په منځنۍ دوره کې غزل د پخوا په پرتله ښه پرمختګ کړی دی. په دې دوره کې يې د موضوع له پلوه بېلابېل مضامين راخيستي او هم يې ژبنی هنر لوړ پوړ ته رسېدلی دی. د خوشحال خان خټک، عبدالرحمان بابا، عبدالحميد مومند او نورو شاعرانو په شعرونو کې ښه ډېر او خورا ښه غزلونه شته دي.

د عبدالحميد مومند يو غزل دا دی:

| | |
|---|---|
| هغه مخ کړم مبتلا په تأسف | چې يې لاس په تأسف مږي يوسف |
| بې له دې چې يې له سره ځان قربان کړم | ګڼه نه يې شته هېڅوک د حسن کف |
| چې مې يار له خوبه ويښ نه کړې نسيمه | ګوره الوځه په ورو په تلطف |
| ما دی سر ومال وښکليو ته نومړی | وبه نه کړم له دې عهده تخلف |
| چې په ما د صبر دم لولې ناصحه | خپله خوله ستړې کوې په دا چف چف |

که آشنا د حميد مرګ وته زړه کړي
په ښه کار کې دی څه ډيل و توقف

لکه څنګه چې وويل شول پښتو غزل په لرغونې دوره کې په اتمه هجري پېړۍ کې پيل شو او بيا په منځنيو دورو کې د کمال پوړيو ته ورسېد. د روښانيانو په پېر کې ميرزا خان انصاري، دولت لوانی، واصل روښاني او کريمداد د غزل صنف ته پراختيا ورکړه چې زياتره مضامين يې تصوفي وو. خوشحال خان خټک او د ده زامنو اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک د غزل صنف نور هم ښکلی کړ او دغه ادبي عنعنه يې ښه وپالله. په همدغه دور کې عبدالحميد

مومند او کاظم خان شیدا د غزل هنري ښکلا لوړو مدارجو ته ورسوله چې د دوی پیروانو هم دغه لاره په ښه توګه وپالله.

عبدالحمید مومند او کاظم خان شیدا د خپلې غزلیزې شاعرۍ له کبله د زیات شهرت خاوندان شول.

رحمان بابا هم د ښو غزل ویونکو شاعرانو له ډلې څخه دی چې غزلې یې زیاتې مشهورې دي.

د پښتو ادب په معاصره دوره کې پښتو غزل بیا ډېر لوړ پوړ ته رسېدلی دی. په دې دوره کې پښتو غزل له هره اړخه پرمختګ کړی دی. د غزل ژبنی اړخ ډېر هنري شوی او هم یې ډول ډول مضامین منعکس کړي دي. په دې دوره کې خو ځینې څېړې دومره راڅلېدلي دي چې د پښتو غزل په بابا یې شهرت موندلی دی، لکه حمزه شینواري ته همدغه لقب ورکړی شوی دی او غزل (بابا) یې بولي.

حمزه په خپله دغې موضوع ته په خپل یو شعر کې داسې اشاره کوي:

ستا په اننګو کې د حمزه د وینو سره دي
ته شوې د پښتو غزله څوان زه دې بابا کړمه

**دلوست لنډیز:**

د نورو ژبو په څېر پښتو ادب هم لرغونی تاریخ لري. غزل په پښتو ادب کې د شعر یو ډول دی. غزل له څو سوه کلونو راهیسې په پښتو ادبیاتو کې خورا مهم ځای نیولی دی. په پښتو کې تر ټولو پخوانی تر لاسه شوی غزل په اتمه هجري قمري پېړۍ پورې اړه لري. دغه غزل د اکبر زمینداوري دی. غزل په پښتو ادب کې هم بېلابېل پړاوونه وهلي دي. پښتوغزل اوس مهال دګاونډیو ژبو له معاصر غزل سره د سیالۍ جوګه دی او تر نورو ژبو وروسته پاتې نه دی.



فعالیتونه

لاندېنیو پوښتنو ته بشپړ ځوابونه وواياست:

ـ غزل له څو نه تر څو پورې بیتونه لري؟

ـ پخوا د غزل موضوع څه وه؟

ـ اوس پښتو غزل کوم موضوعات رانغاړي؟

ـ د پښتو لومړنی تر لاسه شوی غزل د چا دی؟

ـ په معاصره دوره کې څوك د پښتو غزل په بابا مشهور دی؟

ـ که یو شعر شل بیتونه ولري او د لومړي بیت دوه نیم بیتي یې هم قافیه نه وي غزل ورته ویلای شو که نه؟

لاندېنی متن له ځان سره ولولئ، درې خاص نومونه پکې پیدا او په کتابچو کې یې په جملو کې استعمال کړئ:

د پښتو ادبياتو تاريخ په منځنۍ دوره کې غزل د پخوا په پرتله ښه پرمختګ کړی دی. په دې دوره کې يې د موضوع له پلوه بېلابېل مضامين راخيستي دي او هم يې ژبنی هنر لوړ پوړ ته رسېدلی دی. د خوشحال خان خټک، عبدالرحمان بابا، عبدالحميد مومند او نورو شاعرانو په شعرونو کې ښه ډېر او خورا ښه غزلونه شته.

لاندېنۍ جملې او صفتونه پکې پيدا کړئ او بيا يې په جملو کې وکاروئ.

ـ زمري د سپين کاغذ پر مخ په تور قلم يو ليک وکېښ.

ـ ورمې له برې چينې څخه يخې اوبه راوړې.

ـ ګلالۍ په رڼه هنداره کې خپل مخ وليد.

ـ زده کوونکي دې په وار سره په متن کې راغلي غزلونه ولولي او هر بيت دې معنا کړي.

ـ په منځنۍ دوره کې مشهور غزل ويونکي شاعران کوم دي؟ د پنځه تنو نومونه يې وليکئ.

۱: ................................. ۲: .....................................

۳: ................................. ٤: .....................................

۵: .................................

ـ تر اکبر زمينداوري وروسته پښتو غزل ته کومو شاعرانو وده ورکړه، نومونه يې واخلئ:




د حمزه بابا هغه غزل چې په دې کتاب کې راغلی دی، ټول په خپلو کتابچو کې وليکئ او بيا يې مفهوم په روان نثر وليکئ.





# مېرمن عینو



افغانان که ننګیالي پلرونه لري، نو ننګیالۍ میندې هم لري. زموږ د هېواد ویاړمن تاریخ دننګیالیو مېړونو تر څنګه د ننګیالیو مېرمنو په کارنامو هم ډک دی. د دې مېړنیو او ننګیالیو مېرمنو کارنامې زموږ په سیاسي او ادبي تاریخونو کې تلپاتې او خوندي دي.مېرمن عینو هم له دغو مېرمنو څخه ده.

- د خپل هېواد د څو ننګیالیو مېرمنو نومونه واخلئ؟
- مېرمن عینو د کوم پاچا په وخت کې ژوند کاوه؟

د کندهار ښار ته نژدې يو کارېز دی چې د ((عينو کارېز)) يې بولي. عينو يوه ننګيالۍ پښتنه مېرمن وه چې د احمد شاه بابا د پاچاهۍ په وخت کې يې ژوند کاوه.

وايي يو وخت چې احمد شاه بابا د هندوستان په يوه سفر تللو، د دې مېرمنې مېړه هم په هغو عسکرو کې و چې له احمد شاه بابا سره تلل. احمد شاه بابا له سفره بېرته بريالی راوګرځېد. لښکر چې د کندهار ښار ته نژدې راورسېد، شپه شوه. هغه امر وکړ چې همدلته شپه تېره کړي او سبا د ورځې په ښه شان او شوکت ښار ته ننوځي. د مېرمن عينو مېړه د شپې لخوا له نورو لښکرو څخه پټ خپل کور ته لاړ، د کور دروازه يې وټکوله. مېرمن عينو دروازې ته ورغله، ويې پوښتل: څوك يې؟

سپاهي خپل ځان وروپېژاند، هغې مېرمنې بيا وپوښته: څنګه راغلې؟ احمد شاه بابا څه شو؟ لښکر مو بريالی شو؟

مېړه يې وويل: که مو لښکر بريالی شوی نه وای، نو زه به هم تا ته ژوندی نه وای راغلی، د پښتنو لويه سوبه په برخه شوې ده...

عينو بيا پوښتنه وکړه: نو ته ولې يوازې راغلې؟ نور لښکر څه شو؟

مېړه ورته وويل: د بابا په امر لښکر ښار ته نژدې پروت دی چې سبا د ورځې په رڼا کې ښار ته ننوځي. زه ستا مينې ناکرار کړم او تر هغو د مخه راغلم، اوس ژر دروازه راخلاصه کړه چې سره ووينو...

عينو ورته وويل: ته تر چا نازولی وې چې ملګري دې پرېښودل او د بابا د امر پر خلاف را دمخه شوې، ماته راغلې؟ آيا ستا نورو ملګرو ښځې نه درلودې؟ او که يې په سينو کې زړونه نه وو؟

دا ټول وو؛ خو هغو نه غوښتل چې د بابا د امر مخالفت وکړي...

که سبا نورې پښتنې مېرمنې خبرې شي، ماته به څه وايي!؟ دا ډېر لوی پېغور دی، هېڅکله تاته دروازه نه بېرته کوم، ځه ولاړ شه! تر هغو زما ليدل پر تا حرام دي چې بېرته لاړ نه شې او سبا د احمد شاه بابا تر بېرغ لاندې له خپلو نورو ملګرو سره يو ځای رانه شې.

د عينو مېړه د خپلې ننګيالۍ مېرمنې له پېغوره وشرمېد، بېرته ولاړ، خو خېمې ته نژدې څوکيدارانو ونيو او سبا ته يې د احمد شاه بابا مخې ته وروست. څوکيدارانوعرض وکړ چې دا سپاهي له اجازې پرته د شپې کور ته تللی و.

احمد شاه بابا پوښتنه ځني وکړه، عسکر چې څه ليدلي او اورېدلي وو ټول يې احمد شاه بابا ته وويل.

احمد شاه بابا د هغې پښتنې مېرمنې پر پښتنواله او افغاني احساس باندې شاباسی ووايه. د هغې په درناوي يې د دې عسکر گناه هم وبخښله. مېرمن عينو ته يې يو کارېز ور وباښه چې تراوسه د ((عينو کارېز)) په نامه مشهور دی. دا کارېز د کندهار ښار لمر خاته ته د يو پړاو په واټن لېرې پروت دی.

**د متن لنډيز:**

غيرت او همت په هر انسان (ښځه او نر دواړو) کې وي. په افغاني ټولنه کې په هر ډگر کې داسې مېرمنې تېرې شوې دي چې مورډ يې اوس پر کارنامو وياړو. مېرمن عينو له دغو مېرمنو څخه يوه وه. مېرمن عينو دا نه خوښوله چې مېړه يې د خپل پاچا له امره سر وغړوي؛ نو ځکه مېرمن عينو هغه ته ور بېرته نه کړ. احمدشاه بابا چې په پېښه خبر شو، مېرمن عينو ته يې د هغې د لوړ احساس او هېواد دوستۍ په درناوي کې يو کارېز ورو باښه.




- د پورتنۍ کيسې لنډيز په خپلو الفاظو کې ووایاست.

لاندېنيو پوښتنو ته لنډ، لنډ ځوابونه ووایاست:

- مېرمن عينو خپل مېړه ته ور بېرته کړ که نه؟
- احمدشاه بابا عينو ته څه شی ور وباښه؟
- احمدشاه بابا د کوم ځای له سفره راستون شوی و؟

لاندې متن په غور سره واورئ او بيا پوښتنوته ځوابونه ووایاست:

وايي يو وخت چې احمد شاه بابا د هندوستان په يوه سفر تللو، د دې مېرمنې مېړه هم په هغو عسکرو کې و چې له احمد شاه بابا سره تلل. احمد شاه بابا له سفره

بېرته بريالی راوګرځېد. لښکر چې د کندهار ښار ته نژدې راورسېد، شپه شوه. هغه امر وکړ چې همدلته شپه تېره کړي او سبا د ورځې په ښه شان او شوکت ښار ته ننوځي. د مېرمن عينو مېړه له نورو لښکرو څخه پټ خپل کور ته لاړ، د کور دروازه يې وټکوله. مېرمن عينو دروازې ته ورغله، ويې پوښتل: څوک يې؟

- د احمدشاه بابا لښکر چې ښار ته نژدې راورسېد، احمد شاه بابا هلته ولې د شپې تېرولو امر وکړ؟
- مېرمن عينو خپل مېړه ته ور بېرته کړ؟ بشپړ ځواب ووایاست.
- احمد شاه بابا کوم لوري ته په سفر تللی و؟
- څوک په پټه کور ته لاړ؟




تاسو که د کومې تکړه ښځې يا نجلۍ په هکله کومه کيسه اورېدلې وي په څو کرښو کې يې وليکئ. يا له خپل مور و پلار څخه د خپل کلي يا شاوخوا کومې تکړه مېرمنې په اړه پوښتنه وکړئ او بيا يې وليکئ.

# ټېښته

وايي د سقراط په وختونو کې يو سړی د جنګ له ډګره وتښتېد، سقراط ورته وويل: دا ډېر شرم دی!

هغه سړي وويل: که دا شرم قبول نه کړم نو مرګ دی!

سقراط وويل: ژوند هغه وخت ښه وي چې وروسته شرافت لري. که دا نه وي، نو تر بې شرافته ژوند مرګ ښه دی!

# جرگه



انسانان په خپل ژوند کې د یوه ځانګړي نظم او قانون تابع دي او که داسې نه وي؛ نو ګډوډي او پرېشاني رامنځ ته کېږي او خبره زور او تېري ته رسي چې په نتیجه کې ټولنیز ارزښتونه له منځه ځي او نابرابري رامنځته کېږي او یو د بل حقونه تر پښو لاندې کوي. د دې لپاره چې د ګډوډیو او نابرابریو مخه ونیول شي او په ټولنه کې نظم راشي؛ نو یو لړ خاص قوانین رامنځته شوي دي چې مدني او اساسي قوانین یې بولي. وګړي مکلف دي چې له هغو څخه پیروي وکړي. ددې تر څنګ د قبیلو، قومونو او خپلونو دودیز او عنعنوي تګلارې، ولسي نرخونه او قوانین هم شته چې د جرګې او مرکې په نامه یادېږي او په سختو شرایطو کې لویې ستونزې د همدغو جرګو او مرکو له لارې هوارېږي. دا دی په دې لوست کې تاسو ته د جرګې په اړه معلومات درکوو:

- تاسو جرګه پېژنئ؟ په اړه یې خپلو ملګرو ته خبرې وکړئ!
- ستاسو په کلي کې مشرانو کله جرګه جوړه کړې ده؟ که یې جوړه کړې وي، نو د څه په اړه وه او پرېکړې یې څه وې؟

جرگه په پښتو کې یو ډېر ستر او ارزښتمن دستور دی چې د پښتون ولس له ژوند سره تړلی دی. دوی ددغه منلي دود او عنعنې په برکت خپلمنځي ستونزې، لویې شخړې او جنګونه په روغه جوړه او امن بدلې کړې دي. له همدې کبله دغه دود ډېر لوی او ستر ارزښت لري او پښتانه ورته په درنه سترګه ګوري.

کله چې څو کسان په یوه ښه باندې د بحث او پرېکړې لپاره سره راغونډ شي، دې ته پښتون ولس جرگه وایي او په محاوره کې یې جرگه کېدل بولي او یا وایي چې:

جرگه شول، په جرگه سره کېناستل یا جرگې ته سره کېناستل.

په بله ژبه او اصطلاح سره داسې هم وایي چې: (فلانی او فلانی سره جرگه شول). ځینې پښتانه د جرگې د کلمې سره دویمه کلمه (مرکه) هم استعمالوي، لکه چې وایي:

جرگه او مرکه یې جوړه کړه. مرکه په اصل کې هغه وړه غونډه ده چې د ځینو کوچنیو پېښو او ستونزو لپاره جوړېږي. (مرکچیان) دومره زیات نه وي، څو کسه وي، وړه شاني غونډه وي او په ځانګړې موضوع باندې خبرې کوي؛ حال دا چې جرگه لویه غونډه وي او د خلکو شمېر پکې زیات وي او پر مهمو پېښو باندې خبرې کوي.

په بل عبارت: جرگه د سلا مشورې یو ډول دی چې لویې پېښې فیصله کوي، خو مرکه د ځینو کوچنیو پېښو د پرېکړو غونډه وي.

هغه قومي غونډې چې د پرېکړې واک ولري او حکم یې د منلو وړ وي، جرگه ورته وایي. د جرگې او مرکې مفهوم یو دی؛ خو په ځانګړي ډول جرگه هغه لویه غونډه ده چې د خېلونو مشران پکې راټولېږي او د لویو قومي پېښو په اړه پرېکړې کوي.

جرگه په ښکاره جوړېږي او په جرگه والو سربېره عام خلک هم پکې ګډون کوي چې د جرگې خبرې واوري. په دغه وخت کې که څوک نظم خرابوي، نو د هغوی لپاره له قبیلوي قوانینو سره سم ټاکلې جزاګانې شته. جرگه په هر مهم او ضروري وخت کې جوړېږي او فیصله یې ټولو ته د منلو وړ وي.

زموږ په هېواد کې دوې لویې جرگې تاریخي اهمیت او شهرت لري. لومړۍ جرگه د میرویس نیکه په وخت کې د (مانجې) جرگه وه چې په ۱۱۱۹ هـ ق (۱۷۰۹ز) کال کې جوړه شوې وه، یو لوی شمېر افغان خېلونو مشرانو پکې ګډون کړی و او میرویس نیکه ته یې د (ګرګین) پر خلاف د ستر قیام او مقابلې اجازه ورکړې وه.

دويمه جرګه د کندهار په (شېر سرخ) کې جوړه شوې وه چې زيات شمېر افغانانو ګډون پکې کړی و چې په پايله کې يې احمد شاه بابا د هېواد د پاچا په توګه وټاکه.

په جرګه کې هر غړی د سپين ږيري په نامه يادېږي او مشر هم ورته وايي. جرګه کوم خاص مشر نه لري، بلکې غړي يې په مساوي شرايطو سره کښېني، په جرګه کې غړي په دايروي شکل کښېني چې د پورته او ښکته امتياز او غوره والی پکې نه وي.

ددې لپاره چې په جرګه کې دواړه خواوې سرغړونه ونه کړي، يو څه نقدې پيسې، ټوپک او نور شيان ورځخه د (مچلګې يا مچلغې) په نامه اخلي چې د تضمين بڼه لري. په پښتو ادب کې شاعرانو هم د جرګې په اړه شعرونه ويلي او د جرګې درنښت او اهميت يې بيان کړی دی. جرګې په هغو وروسته پاتې ټولنو کې چې دولتونه او حکومتونه پکې پوره واکمن نه دي، د ولسي نرخونو د پلي کولو لپاره مهمه ونډه لري؛ خو په لويو ملي مسايلو او په سترو ملي پرېکړو کې د لويو او ملي جرګو ونډه ډېره مهمه ده. لويه جرګه د افغانستان د تاريخ يوه نه هېرېدونکې برخه ده. د افغانستان په اساسي قوانينو کې هم لويه جرګه د يوې دايمي موسسې په عنوان ثبت شوې ده چې د سترو ملي پرېکړو لپاره غونډې جوړوي.

لويه جرګه د افغانستان د لويو ستونزو د هوارولو او سترو ملي پرېکړو تر ټولو لوړه موسسه ده.

## د متن لنډيز:

جرګه په پښتني دود کې د ستونزو او شخړو د هوارولو يوازينۍ او مؤثره لاره ده. جرګه د ډېرو پخوا زمانو راهيسې د پښتنو د ژوند له پيل څخه ورسره ملګرې ده او د زمانې په تېرېدو سره يې بيا هم خپل اهميت له لاسه نه دی ورکړی. کله چې په پښتنو کې يوه پېښه سخته شي او د حل لاره يې ګرانه برېښي، نو جرګه يې پرېکړه کوي. جرګه په ټولو قومونو او خېلونو کې شته او د ضرورت په وخت کې جرګه جوړوي. د جرګې غړي عموماً مشران، سپين ږيري او مخور خلک وي. د جرګې پرېکړه قطعي او اخري فيصله ده او سرغړاوی ترې نه منل کېږي. زموږ په تاريخ کې دوې لويې جرګې تېرې شوې دي چې يوه يې د ميرويس نيکه په وخت کې د (ګرګين) سره د مقابلې لپاره جوړه شوې وه او په بله کې احمد شاه بابا د پاچا په توګه وټاکل شو.



## فعالیتونه

١. زده کوونکي دې لوست له ښوونکي وروسته په چوپه خوله له ځانه سره ولولي؛ مشکل ځایونه دې په پنسل په نښه کړي او بیا دې په حلولو کې له ښوونکي نه مرسته وغواړي.

٢. زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي:

کمزوری مکلف صلاحیت دود تضمین هواروي

٣. د میرویس نیکه په وخت کې جرگه د څه لپاره او چېرته جوړه شوې وه؟ خبرې پرې وکړئ!

٤. ښوونکی دې د متن یوه لنډه برخه وټاکي او د املاء په توگه دې پر زده کوونکو کار وکړي.

٥. د احمد شاه بابا په وخت کې جرگې څه وکړل؟ خبرې پرې وکړئ!

٦. مرکچیان په جرگه کې څه رول لري؟

٧. په متن کې شپږ نومځري پیدا کړئ او جملې ترې جوړې کړئ؟

٨. لاندې تش ځایونه ډک کړئ:

- لومړۍ لویه جرگه د ............ په وخت کې په ............ جوړه شوې وه.
- دویمه لویه جرگه د ............ په وخت کې په ............ جوړه شوې وه.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د جرگې او مرکې په اړه لنډه لیکنه وکړي او سبا ته دې په ټولگي کې خپلو ملگرو ته واوروي.



نولسم لوست

# چاپېریال پاک ساتل

انسان له پخوا څخه د خپل ژوندانه د هوساینې لپاره هلې ځلې پیل کړې دي. دغه هلې ځلې تراوسه را روانې دي او تر هغه به روانې وي، ترڅو چې انسان د ځمکې پر مخ ژوند کوي. د انساني ژوند په هوساینه کې چاپېریال ستر ارزښت لري. موږ باید د چاپېریال په اهمیت پوه شو او نور هم پرې پوه کړو.

- پاك او سمسور چاپېریال په انساني ژوند کې څه ارزښت لري؟
- که چاپېریال ککړ وي، زموږ ژوندانه ته څه گواښونه پېښولای شي؟

د انساني ژوند په هوساینه او اوږدېدا کې پاک او سمسور چاپېریال ډېر ارزښت لري. هوا، اوبه، خاوره، ونې، بوټي، ځنګلونه، کروندې، چمنونه، ورشوګانې، غرونه، دښتې، ژوي، مرغان او نور د چاپېریال په نامه یادېږي. الله ﷻ د چاپېریال هرڅه د انسانانو د هوساینې او ګټې اخیستنې لپاره پیدا کړي دي.

افغانستان ډېر ګڼ ځنګلونه، شنې‌رازه څرځایونه، ځپاند سیندونه او خورا ښکلې سمسورې درې لري. دکونړ، نورستان او پکتیا طبیعي ځنګلونه یې ځانګړې شهرت لري. دغه ځنګلونه ډول ډول ونې لري. زموږ دهېواد غرونه، دښتې او ځنګلونه ډول ډول بوټي او واښه هم لري. ونې او بوټي د سیمو د ښکلا او شنې‌رازې سبب ګرځي. په ونو او بوټو کې ډول ډول مرغان هم ژوند کوي. موږ د ځینو دغو مرغانو له غوښو څخه ګټه اخلو.

له چاپېریال څخه ټول انسانان ګټه اخلي. ساتنه یې په ټولو وګړو پورې اړه لري؛ نو ټول وګړي یې باید په ساتنه او ژغورنه کې ونډه واخلي. د چاپېریال ځینې ځیزونه لکه: کور، کرونده، بڼ، صنعت او نور په وګړو پورې اړه لري. دغه ځیزونه څه ناڅه له نورې ټولنې سره هم اړیکه پیدا کوي. د دغو ځیزونو ګټه یا زیان انساني ټولنې ته رسېدلای شي.

د ټولنې د یوه غړي په توګه هر انسان اړ دی چې د چاپېریال په پاک ساتنه، ژغورنه او شنې‌رازې کې د مسوولیت له مخې هڅې وکړي. انسان باید د چاپېریال هغه توازن وساتي چې الله ﷻ یې هم دساتنې ټینګار کړی دی. داسې عمل ونه کړي او داسې ځیزونه تولید نه کړي چې چاپېریال ته زیان ورسوي.

که له چاپېریال څخه په سمه توګه ګټه واخیستل شي، روغتیایي اسانتیاوې ډېرېږي او انساني ژوند هوسا کېږي. پر عکس یې که له چاپېریال څخه په ناسمه توګه ګټه واخیستل شي، روغتیایي ستونزې رامنځ ته کېږي او انسان لا څه چې د ټولو ژویو ژوند هم ناآرامېږي.

ونې، بوټي، ځنګلونه او ورشوګانې د هوا په پاکوالي او ښخوالي کې ډېر ارزښت لري. هغه دوړې، لوګي او نور ضررناک غازونه چې هوا ککړوي، د ونو او بوټو په واسطه جذبېږي. له ونو او بوټو څخه د انساني او حيواني خوړو په توګه ګټه اخيستل کېږي. د ودانيو او سون د لرګيو لپاره ترې کار اخيستل کېږي. د اوبو په زېرمه کولو او ساتلو کې ډېر رول لري. د ژويو او مرغانو استوګنځايونه برابروي. له سيوري يې انسانان او ژوي ګټه اخلي.

د دې لپاره چې زموږ او زموږ د راتلونکي نسل ژوند هوسا او نېکمرغه وي، بايد د خپل چاپېريال په ژغورنه او پاک ساتنه کې له نورو هېوادوالو سره څنګ په څنګ په اخلاص کارنده ونډه واخلو.

**د متن لنډيز:**

زموږ شاوخوا ټول شيزونه، لکه: هوا، اوبه، ځنګلونه، کروندې، دښتې، غرونه، ژوي، مرغان او نور... د چاپېريال په نامه يادېږي. چاپېريال په ټولو وګړو پورې اړه لري ځکه انسان پکې ژوند کوي او ګټه ترې اخلي. موږ ته لازمه ده چې چاپېريال پاک وساتو او سمه ګټه ورڅخه واخلو. هر چېرته چې چاپېريال سمسور او پاک وي، هلته ناروغۍ لږې وي. سمسور چاپېريال وګړو ته بوختياوې پيدا کوي. سمسور چاپېريال ته د تفريح او ساعت تېرۍ لپاره ډېر وګړي او سيلانيان ورځي. له دې لارې د سيمې وګړو ته کار او بوختياوې پيدا کوي.



## فعالیتونه

۱ـ تر ښوونکي وروسته دې زده کوونکي متن په پټه خوله ولولي، بیا دې څو کسه زده کوونکي وار په وار متن ټولګیوالو ته ولولي.

۲ـ هر زده کوونکی دې په خپل وار په متن کې یو نوی لغت ومومي او بیا دې یې په جمله کې وکاروي.

۳- لاندې لغاتونه او معناوې یې لیکل شوي دي، لومړی یې په کتابچو کې ولیکئ او بیا هر لغت له اړوندې معنا سره د کرښې په وسیله ونښلوئ:

| | |
|---|---|
| ۱. هوسانیه | ښکلې، ښېرازه |
| ۲. سمسور | مشهورتیا |
| ۳. ژوي | ارامي |
| ٤. شهرت | ژوندي، ساکښ |
| ٥. ژغورنه | صداقت |
| ٦. ونډه | رابطه |
| ۷. اړیکه | ساتنه |
| ۸. اخلاص | برخه |

٤- زده کوونکي دې د لاندې لغتونو متضاد لغتونه پیدا او ولیکي.

سمسور      ککړ      اوبه

هوسا      پاک      روغتیا

٤ـ په متن کې ورته او متضاد لغتونه پیدا کړئ او په شفاهي توګه یې خپلو ملګرو ته ووایئ!



## کورنۍ دنده

د خپل چاپېریال د لسو ژویو، پنځو ونو او درې ښځینه مرغانو نومونه ولیکئ.



شلم لوست

# اخیستونکی او پلورونکی
## (محاوره)



غږېدل او خبرې په ژبه کېږي او ژبه هغه وخت زده کېږي چې خبرې پرې وشي. هغه مفاهیم او کلمې چې په ژبه ویل کېږي، که بیا بیا تکرار شي، نو ذهن ته په آسانه سپارل کېږي، ځکه چې خبرې اترې د ژبې د زده کولو یوه ښه او اسانه لار ده.

د دې ترڅنګ د غوږ نیولو او بیا بیا لیکلو له لارې هم ژبه په اسانی زده کېږي.

څومره چې یوه موضوع یا لوست په غور ولولو، په غور ورته غوږ ونیسو او په غور یې بیا بیا ولیکو، په همغه اندازه یې ژر زده کوو.

- یوه ژبه څنګه زده کېږي؟
- د ژبو زده کول څه ګټه لري؟

اخیستونکی: السلام علیکم!

- خرڅوونکی: وعلیکم السلام. ستړی مه شې!

- خدای دې خیر درکړي. یو څه شیان مې پکار دي.

ـ څه شی دې پکار دي؟

ـ ښې وریجې لرې؟

ـ ښې وریجې هم شته او ارزانه هم لرم.

ـ ښې وریجې یو من په څو افغانۍ دي؟

ـ ستا لپاره په درې سوه پنځوس افغانۍ.

ـ ښه نو له دغو ښو وریجو پنځه منه وتله!

ـ نور څه پکار دي؟

ـ اوبلن غوړي لرې؟

ـ ولې نه! اوبلن غوړي هم لرم.

ـ د کوم ځای غوړي دي؟

ـ زموږ د خپل هېواد غوړي دي چې کولسترول نه لري او روغتیا ته هم زیان نه رسوي.

ـ وزن یې څومره دی؟

ـ مختلف وزنونه لري. له یوه لیتر څخه نیولې بیا تر لسو لیترو پورې لرم.

ـ د لسو لیترو بیه څو افغانۍ ده؟

ـ شپږ سوه پنځه اتیا افغانۍ.

ـ ښه نو یو لس لیتره ډبی یې راواخله!

ـ نور وایه، بل کوم څیز راواخلم؟

ـ اوړه لرې؟

ـ هو ډېر ښه اوړه لرم.

ـ یوه بوجۍ اوړه هم راکړه!

ـ څو منی بوجۍ غواړې؟

ـ ته څو منۍ بوجۍ لرې؟
ـ زما سره لوېې څوارلس منۍ بوجۍ هم شته او اووه منۍ بوجۍ هم لرم. کومه يوه يې غواړې؟
د څوارلس منۍ بوجۍ بيه څو ده؟
ـ په دوه زره او پنځه سوه افغانۍ.
ـ دوه بوجۍ راواخله.
ـ سمه ده، نور څه شی غواړې؟
ـ هو، نخود مې هم پکار دي؛ خو من يې په څو دي؟
ـ په درې سوه افغانۍ
ـ څومره وتلم؟
ـ پنځه منه نخود هم وتله.
ـ پام کوه گوره چې په نرخ کې زياتی راسره ونه کړې او شيان راباندې گران ونه پلورې!
ـ بې غمه اوسه، سودا يوسه بيا يې په بل ځای کې هم بيه کړه.
ـ ټوکه مې وکړه چې خپه نشې!
ـ نه! ولې به خپه کېږم. زه هم پوه شوم چې ټوکه دې وکړه.
- روپۍ يې جمع کړه!
- سمه ده.




۱ـ زده کوونکي دې په پورته مرکه کې ضميرونه په نښه کړي او ودې وايي چې کوم ضميرونه دي.

۲ـ يو زده کوونکی دې دوکاندار او بل دې اخيستونکی شي او متن دې د کتاب له مخې د خبرو اترو په بڼه ولولي.

۳_ زده کوونکي دې په متن کې نومونه پيدا کړي او ودې وايي چې کوم نومونه دي.

٤_ دوه زده کوونکي دې د دوکاندار او اخيستونکي په توګه خبرې وکړي او د اړتيا وړ شيان دې واخلي.

٥_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

| | |
|---|---|
| ۱_ مايع | ۲_ ځيز |
| ۳_ نرخ | ٤_ ګران |
| ٥- مفاهيم | ٦- يومن |
| ۷- کولسترول | ۸- زيان |

٦_ زده کوونکي دې لاندې تش ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړي.

- ژبه ځنګه په اسانۍ سره (                    ) کولای شو؟

- که ژبه مو نه وي زده، نو څه ډول (                    ) به ولرو؟

۷_ زده کوونکي دې د لاندې کلمو مترادفې کلمې پيدا کړي او په کتابچو کې دې وليکي.

۱_ بې غمه    ۲_ بيه    ۳_ تيار  ٤_ ويشل



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست د متن په څېر په لسو کرښو کې د کتاب اخيستونکي او پلورونکي ترمنځ خبرې اترې (محاوره) وليکي.

يوويشتم لوست

# ټوکې ټکالې



ځينې خلك خپلې خبرې پر داسې وينا پيلوي چې د اورېدونکو پام ځانته راوګرځوي او د ده خبرو ته په غور غوږ کېښودل شي. دا ډول خلك زيار باسي چې د مشرانو له ويناوو، متلونو او ټوکو ټکالو څخه کار واخلي، ځکه چې د ولسي ادبياتو په دغو ډولونو کې لطافت، ظرافت او زړه راښکون وي. په دې لوست کې د ټوکو ټکالو په برخه کې معلومات لولو.

- په تاسو کې کوم يو ټوکې ويلای شي؟ خپلو ملګرو ته يوه ټوکه واوروئ!
- ټوکې يوازې په نثر وي که په نظم هم وي؟

ټوکې ټکالې زموږ د ولسي ادب يوه برخه ده. ټوکې ټکالې هم زموږ په ولسي ادب کې ارزښتناک ځای لري. د لنډيو په څېر ځانګړې ويونکي او ليکوال نه لري؛ نو ځکه خو د ټول ولس شريک مال ګڼل کېږي.

ټوکې ټکالې کليوال، سيمه ييز او په ملي کچه ويونکي لري چې ځينې خلک يې د خوشحاليو په لويو او وړو غونډو کې رابولي او د دغه هنر په ښرګندولو د غونډې خلک خندوي او خوشحال يې ساتي. ټوکې يوازې د خندا لپاره نه وي، بلکې د خندا تر څنګه يو عبرت هم لري چې انسان ترې د ژوندانه د چارو په سمون کې ګټه اخيستلای شي.

که څه هم زموږ په ټولنه کې د اکثرو خلکو ټوکې زده وي، خو ځينې سيمې خاص ټوکې ويونکي لري چې په ودونو او نو رو ښاديو کې يې خلک راغواړي او خپلې ښادۍ ته پرې لازياته خوشحالي وربښي.

هغه څوک چې ټوکې يې زده وي او دغه فن پرمخ بيايي (ټوکمار) ورته وايي. ټوکمار په خلکو کې زيات مشهور وي.

کله، کله داسې هم کېږي چې د يوې سيمې ټوکمار د بلې سيمې له ټوکمار سره په سيالۍ ټوکې وايي او په ځانګړې ډول هم د دوو کسو ترمنځ ټوکې ويل کېږي.

په دغسې سياليو او مسابقو کې چې په ښاديو کې ترسره کېږي، ګټونکي ته نقدې پيسې، لونګۍ، جامې او نور ارزښتناک شيان د جايزې په توګه ورکول کېږي چې د ټوکمار په تشويق، شهرت او محبوبيت کې اغېزه لري.

په ورځني ژوند کې د ستړيا د لېرې کولو او له خواشينۍ څخه د پام اړولو لپاره هم خلک ټوکې وايي دلته څو ټوکې د بېلګې په توګه راوړو:

## بوډۍ

يوه بوډۍ ښځه موټر ته وختله، لږه شېبه وروسته يې له يوې سورلۍ څنې پوښتنه وکړه چې زويه! دا موټر خو به ټکر نه کوي؟

سورلۍ په ډېره حيرانتيا وپوښتل چې ولې؟

بوډۍ ورته وويل: زما سره څو دانې هګۍ دي چې ماتې نشي.

## هوټل

د يوه هوټل په دروازه يې ليکلي وو چې (ډوډۍ ته وخوره پيسې به دې لمسي ورکوي) يوه سړي ډوډۍ وخوړه او روان شو. د هوټل شاګرد را ونيو چې پيسې راکړه!

سړي ورته په غوسه وويل: ټګانو او درواغجنو! خلک دوکه کوئ او په چل ترې پيسې لوټئ.
شاګرد ورته وويل: څنګه؟
سړي ورته وويل: په دروازه مو څه ليکلي؟
شاګرد ورته وويل: موږ دوکه نه کوو، ستا نيکه دلته ډوډۍ خوړلې وه، پيسې به يې اوس ته ورکوې.

## کب پلورونکی

يو سړی د کب پلورونکي دوکان ته ورغی، يوه کب ته يې خوله ورنژدې کړه. دوکاندار په ملنډو پوښتنه څنې وکړه چې څه دې ترې وپوښتل؟
سړي ورته وويل: زوی مې سيند وړی دی د هغه پوښتنه مې څنې وکړه چې ليدلی، خو به يې نه وي.
دوکاندار ورته وويل، نو څه يې درته وويل؟
هغه ځواب ورکړ: راته ويې ويل چې ماته پته نشته، ځکه چې ستا د زوی يوه اونۍ کېږي چې سيند وړی او زما دا يوه مياشت کېږي چې له سيند نه يې را ايستلی يم.

## درويزګر

يوه درويزګر يوه دروازه وټکوله او آواز يې وکړ چې خير راوړئ خدای مو وبخښه!
د کور نه ورته غږ وشو چې څه غواړې؟ درويزګر وويل زړې جامې. کور والا ورته وويل نشته.درويزګر په دويم ځل اوره وغوښتل. ورته وويل شول چې نشته. په دريم ځل يې نغدې پيسې وغوښتې. دا ځل هم ورته د کور نه غږ شو چې نشته. درويزګر په غوسه شو او کور والا ته يې وويل: نو ته دلته څه ګورې! راځه چې دواړه خير ټول کړو.

**د متن لنډيز:**
ټوکې ټکالې د ولسي ادب په زړه پورې، تفريحي برخه ده. ټوکې ټکالې د ويونکي د وينا د لطافت او ظرافت ښکارندويي کوي. د دې ترڅنګ پښتو ټوکې ټکالې د پښتو ژبې د فولکلوري ادب يوه خورا مهمه او لرغونې برخه ده.
د پښتو ادب دا برخه هم ډېره شتمنه او بډايه ده، خو زياته برخه يې لاتر اوسه هم په ناليکلې بڼه پاتې ده. لازمه ده چې ټوکې ټکالې له ولس نه راټولې او ليک ته وسپارل شي چې دغه مهمه برخه خوندي شي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لوست په چوپه خوله ولولي او مطلب دې په وار سره ټولګیوالو ته ووایي.

۲ـ زده کوونکي دې په خپل، خپل وار لوست په لوړ آواز ولولي او نور دې غوږ ورته ونیسي او د لوست په اړه دې یو له بل نه پوښتنې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او د سیالۍ په شکل دې یو بل ته ټوکې سره ووایي.

٤ـ لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروئ.

۱ـ ټګان ۲ـ پته ۳ـ پلورونکی ٤ـ دوکه ٥- ظرافت ٦- لطافت

٥ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

ـ ټوکه د څه لپاره ویل کېږي؟

ـ ټوکه د ادب په کومه برخه کې راځي؟

ـ ټوکه یوازې د خندا لپاره وي او که کومه بله ګټه هم لري؟

٦ـ هر زده کوونکی دې د لوست له متن څخه څلور، څلور صفتونه پیدا کړي.



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د خپلې کورنۍ له غړو څخه یوه، یوه ټوکه زده کړي، په خپلو کتابچو کې دې ولیکي او په راتلونکي درسي ساعت کې دې ټولګیوالو ته واوروي.



دوه ویشتم لوست

# د ماشومانو حقونه



ماشومان د هرې ټولنې اساس دی، د هرې ټولنې ښکلا ده. د هر انسان د ژوندانه پیلامه ماشومتوب او پای یې بوډاتوب دی. انسان په دغو دوارو پړاوونو کې ځانګړې پاملرنې او پالنې ته اړتیا لري او حقونو ته یې باید درناوی وشي.

- ماشوم چا ته ویل کیږي؟
- د ماشومانو لپاره د ملګرو ملتونو اداره په څه نامه یادیږي؟

ماشومان د هرې ټولنې تر نیمايي زیاته برخه جوړوي. ټولنیز عدالت هم د دې غوښتنه کوي چې د ماشومانو ټول حقونه په پام کې ونیول شي، ځکه چې دوی د راتلونکي واکمنان دي. د اسلام سپېڅلي دین څه د پاسه څوارلس سوه کاله پخوا د ماشومانو حقونو ته پاملرنه کړې ده، مور وپلار او نور پالونکي یې د هغوی په سالمه روزنه او پالنه مکلف کړي دي. په اسلام کې که مور او پلار او نور پالونکي په ماشومانو حقونه لري؛ نو ماشومان هم پر هغوی حقونه لري. د اسلام له نظره د ماشومانوځینې حقونه دا دي:

_ پر ماشوم د ښه او سم نوم ایښودل،
_ ماشوم ته خوراک، څښاک او پوښاک برابرول،
_ ماشوم ته روغتیایي اسانتیاوې برابرول،
_ ماشوم ته د زده کړو اسانتیاوې برابرول،
_ د ماشوم سمه او سالمه روزنه کول،
- له ماشومانو سره په ډېره نرمۍ چلند کول او نور...

د ماشوم د لومړني خوراک په اړه قرآن کریم وایي چې تاسو ماشوم ته پوره دوه کاله دمور شیدې ورکړئ. رسول الله ﷺ به له ماشومانو سره ډېره مینه کوله، په نرمۍ به یې ورسره خبرې کولې. ډوډۍ به یې ورسره شریکه خوړله. رسول الله ﷺ ویلي دي:

چا چې د مشرانو درناوی ونه کړ او پر ماشومانو یې رحم ونه کړ، هغه له موږ څخه نه دی.

اوس د نړۍ ټولې بشري ټولنې دماشومانو د حقونو په اړه ځینې اعلامیې او تړونونه لري. په ۱۹۵۹ میلادي کال کې د ماشومانو د حقونو نړیواله اعلامیه د ملگرو ملتونو له خوا تصویب شوه. په دغې اعلامیې کې لاندېنیو ټکو ته پاملرنه شوې ده:

_ له توپیر پرته د ماشوم ازادي،

ـ له ماشومانوڅخه د دولتونو ځانګړې ملاتړ،
ـ د قوم او ملي پېژندګلوۍ درلودل،
ـ د ماشومانو امنیت او سالمه روزنه،
ـ له معیوبو ماشومانو سره مرسته،
ـ له ماشومانو سره مینه او په تفاهم د هغو څارنه او ساتنه.
ـ ماشوم ته د ورېا زده کړو د اسانتیاوو برابرول او نور.

په ۱۹۸۹ مېلادي کال کې د ملګرو ملتونو د ټولنې له خوا د ماشومانو نړیوال تړون تصویب شو او په هغه کې د ماشوم حقونه خوندي او په مراعات کولو یې دولتونه او ولسونه مکلف وګڼل شول.

ماشوم ته باید په نرمۍ سره لارښوونه وشي. د ماشوم وهل ټکول او رټل د ماشوم پر ذهني پرمختګ بده اغېزه کوي. جرائت یې کمېږي، حافظه یې کمزورې کېږي او ټولنیزې اړیکې یې سستېږي او په پای کې د یوه نیمګړي انسان په توګه د ټولنې پر اوږو بارېږي.

لویان باید بېځایه له پېرې، بلا، شیشکې، دېو او نورو څخه خپل ماشومان ونه ویروي. هغوی ته باید د دغو ځیزونو نومونه وانه خیستل شي. په دې پوه او ډاډه کړای شي چې دغه ځیزونه دوی ته هیڅ زیان نه شي رسولای.

مور و پلار او یا نور مشران باید د ماشوم نظریات واوري، سلا مشوره ورسره وکړي، پوښتنو ته یې غوږ ونیسي او ځواب ورکړي. ماشوم باید له پوښتنو او غږېدا څخه منع نه شي. ماشومانو ته باید د کسب،کار او مسلک ټاکلو حق ورکړای شي.
باید د ماشومانو د کوژدو او ودونو مخنیوی وشي. په کوچنیتوب کې کوژدې او ودونه ډول ډول ستونزې رامنځته کوي او هم یې د زده کړو مخنیوی کوي.

پر مور او پلار او پالونکو سربېره ماشومان پر خپلو حکومتونو هم حقونه لري. حکومتونه او دولتونه مکلف دي چې د راتلونکې دغه واکمنان ښه وپالي، ښه یې

وروزي او پر هغوی د هر ډول تېري مخه ونيسي.

بېوزلي، وزګارتيا او شخړې د ماشومانو د حقونو د تر ټپنو لاندې کولو بنسټيز لاملونه دي. که د بېوزلۍ او وزګارتيا مخه ونيول شي او سوله رامنځته شي؛ نو د ماشومانو حقونه به هم په ښه توګه په ټولنه کې په پام کې ونيول شي.



**د متن لنډيز:**

ماشومان چې د هرې ټولنې نيمايي برخه جوړوي، د مينې او عاطفې استازي دي. ماشومان د راتلونکې واکمنان دي. هر انسان هرو مرو د ماشومتوب پړاو وهي. د ژوندانه پيل ماشومتوب او پای يې بوډاتوب دی. هر انسان له دغه پړاوه راتېرېږي؛ نو بايد د ماشومانو حقونه په هره ټولنه کې په پام کې ونيول شي.




لاندېنیو پوښتنو ته لنډ لنډ ځوابونه ووایاست:

- اسلام پر مور و پلار او نورو مربیانو د ماشومانو کوم حقونه ایښي دي؟درې یې ووایاست.
- ماشومان پر دولت څه حقونه لري؟

په نړیوال تړون کې چې د ملګرو ملتونو له خوا تصویب شو د ماشومانو په اړه څه راغلي دي؟

- څو زده کوونکي دې په افغانستان کې د ماشوم د حقونو په اړه وغږېږي.
- لاندېنۍ کلمې ولولئ، ووایاست چې له ګرامري اړخه څه نومېږي؟

هغه، چا، څوك، ته.

په خپله کتابچه کې هره پورتنۍ کلمه په یوه جمله کې استعمال کړئ.

- لاندې جملې په غور سره واورئ او بیا پوښتنوته ځوابونه ووایاست:

مور و پلار او یا نور مشران باید د ماشوم نظریات واوري، سلا مشوره ورسره وکړي، پوښتنو ته یې غوږ ونیسي او ځواب ورکړي.ماشوم باید له پوښتنو او غږېدا څخه منع نه شي. ماشومانو ته باید د کسب، کار او مسلك ټاکلو حق ورکړل شي. د ماشومانو د کوژدو او ودونو مخنیوی باید وشي. په کوچنیتوب کې کوژدې او ودونه ډول ډول ستونزې رامنځته کوي او هم یې د زده کړو مخنیوی کوي.

ــ مور و پلار او نور مشران باید له ماشومانو سره څه ډول چلند وکړي؟
ــ په کوچنیتوب کې کوژده کول څه ستونزې لري؟

ـ په پورتني متن کې څو اوږدې (ی) ګانې شته؟ کلمې يې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

لاندېني لغتونه معنا شوي دي، تاسو په مخامخ کتار کې د هر لغت معنا پيدا او په جملو کې يې استعمال کړئ:

| روزنه | نظارت |
|---|---|
| درناوی | معاهده |
| تړون | احترام |
| خارنه | تاثير |
| اغېز | تربيه |

ـ د اسلام له نظره د ماشومانو ځینې حقونه په لاندې ډول دي. زده کوونکي دې په وار سره په یوه، یوه حق باندې خبرې وکړي او پراختيا دې ورکړي:

ـ پر ماشوم د ښه او سم نوم ايښودل

ـ ماشوم ته خوراک، څښاک او پوښاک برابرول

ـ ماشوم ته روغتيايي اسانتياوې برابرول

ـ ماشوم ته د زده کړو اسانتياوې برابرول

ـ د ماشوم سمه او سالمه روزنه کول

- له ماشومانو سره په ډېره نرمۍ چلند کول او نور...



## کورنۍ دنده

د ماشومانو د حقونو په اړه اته کرښې مطلب ولیکئ.





# سیمه ییزې لوبې



زموږ د هېواد په ټولو ولایتونو او بېلابېلو سیمو کې کوچنیان او زلمیان ډول، ډول لوبې کوي. دغه لوبې د کال په بېلابېلو موسمونو کې تر سره کېږي او پر ساعت تېری سربېره بدني روزنه هم ده.

دا لوبې دوه کسیزې، څلورکسیزې، شپږکسیزې اته کسیزې او تر دې د زیاتو کسانو یعنې ډله ییزې هم وي. ډله ییزې لوبې د دوو ډلو ترمنځ د سیالیو په ډول ترسره کېږي.

- تاسو په کومو سیمه ییزو لوبو پوهېږئ؟
- لویان هم سیمه ییزې لوبې لري که نه ؟

زموږ د هېواد په بېلابېلو سیمو کې بېلابېلې لوبې دود دي. ځینې لوبې نړیوالې نه وي، یوازې د یوه هېواد په ځینوسیمو کې دود وي. هغه لوبې چې په سیمو کې دود وي سیمه ییزې لوبې ورته وایي.

والیبال، فوټبال، کرکټ، هاکي، ټینس، پهلواني، ځغاسته، لامبو، سوک وهنه، بایسکل ځغلونه او نورې نړیوالې لوبې دي. دغه لوبې لږ او ډېرې په ټولو هېوادو کې دود دي او ډېر مینه وال لري.

خوسی، توپ ډنډه، ډې، قوتی، چینډرۍ، میرګاټ ، کرښې، پټپټاني، وزلوبه، پړی کشول او نورې سیمه ییزې لوبې دي. دا لوبې زموږ د هېواد په بېلابېلو سیمو او بېلابېلو ولسونو کې دود دي.

دا لوبې زیاتره د کوچنیانو او زلمیانو دي؛ خو ځینې یې د لویانو هم دي. وزلوبه، پړی کښول، تیره اچول او ځینې نورې یې د لویانو لوبې دي.

په سیمه ییزو لوبو کې ځینې ډله ییزې لوبې وي. ډله ییزې لوبې د دوو ډلو ترمنځ د سیالۍ په بڼه تر سره کېږي. ځینې ډله ییزې لوبې دا دي: خوسی، توپ ډنډه، تیره اچول، پړی کشول او نور.

## خوسی:

د خوسي لوبه د دوو ډلو ترمنځ تر سره کېږي. دا دکوچنیانو او زلمیانو لوبه ده؛ خو لویان یې هم کوي. لوبغاړي په دوو ډلو وېشل کېږي او هره ډله ځانته یو میر ټاکي، کله چې ډلې جوړې شي بیا د یوې ډلې د خوسۍ او د بلې ډلې د ډوبۍ ساتلو نوبت وي. خوسی په ډله کې یوازې یو کس وي.

لوبه داسې پیل کېږي چې ټول لوبغاړي په یوه لاس د خپلې پښې ګوتې نیسي. ګوتې داسې نیسي چې د لاس ګوتې د پښو په ګوتو کې ورننباسي او پښه راقاتوي. د خوسۍ واله ډله د خوسۍ مخې ته یوې خواته ولاړه وي. د ډوبۍ واله د ډوبۍ مخې ته ولاړه وي. د ډوبۍ واله ډله هڅه کوي چې خوسۍ ته ځان وررورسوي او د هغې لاس له پښې خوشې کړي او یا یې

راوغورځوي. که خوسی را وغورځي او یا یې لاس له پښې خوشې شي، نو نوبت بایلي. که خوسی ډوپی ته ورسېدله او هغه یې په پښه ووهله، نو دخوسی ډله بریالی کېږي.

## توپ ډنډه:

توپ ډنډه هم ډله ییزه لوبه ده. دا لوبه زیاتره زلمیان کوي. د دې لوبې وسایل له ټوکرڅخه جوړشوی توپ، د لرګي پلنه دړه او هوار پراخ ډګر وي. دغه دړه (ډنډه) تقریباً نیم متر اوږده وي. ترتیب یې داسې دی چې لوبغاړي دوې ډلې شي. یوه ډله په وچه او لمده سره نوبت واخلي او توپ وهي. هر یو کس درې ځله د توپ وهلو حق لري. بله ډله ورته توپ پورته هوا ته غورځوي او تر وهلو وروسته یې نیسي. د توپ وهونکي ملګری تر ټاکلي ځای پورې منډه وهي. که توپ لیرې تللی وي او منډه وهونکی ځان بېرته خپل پخواني ځای ته رارسولای شي؛ نو بېرته هم رامنډه کوي. بله ډله چې توپ یې پورته اچولی، هڅه کوي چې هغه په هوا کې ونیسي او منډه وهونکی پرې وولي. که منډه وهونکی یې د ټاکلو ځایونو ترمنځه وویشت، نو د هغه نوبت وسوځېد. وروسته د بل هلک نوبت وي، تر هغو چې ټول وسوځي او یا لوبه وګټي.

دا لوبه کرکټ ته ورته لوبه ده؛ خو د یوې بلې لوبې (بیس بال) سره ډېر ورته والی لري. دا لوبه له ډېر پخوا راهیسې په افغاني ټولنه کې دود ده.

## چیندرۍ:

چیندرۍ (دمبۍ) د نجونو لوبه ده؛ خو هلکان یې هم کوي. په ټولو ولایتونو کې په لږ و ډېر توپیر سره رواج لري.

د دې لوبې لپاره هواره ځمکه او یوه کوچنۍ ګرده ښویه ډبره چې موشۍ یا چکله بلل کېږي په کار ده.

لوبه داسې ترسره کېږي چې د ځمکې پر مخ د اتو خانو یو مستطیل رسمېږي، خانې یې په ترتیب سره په دې نومونو یادېږي: لومړۍ، دویمه او درېمه خانه، خور اوورور، دم قدم، صحرا اسمان.

په ځینو سیموکې دا خانې د کوټه، منډو، دوزخ، دمۍ، آګره او سرپټ په نومونو یادېږي. لوبغاړې موټۍ (ټیک) په ورو ښکلوي او د مستطیل لومړنۍ خانې ته یې اچوي، بیا په یوه پښه لومړنۍ خانې ته ټوپ وهي، چکله په پښه وهي او له مستطیل نه یې دباندې راباسي. په همدې ترتیب سره په ټولو خانوکې چکله غورځول کېږي او په یوه پښه ترې په تګ راتګ سره راویستل کېږي. کله چې ټولې خانې خلاصې شي، نو بیا یې له لومړۍ خانې نه شروع کوي او په ترتیب سره یې له اولې خانې نه په پښه په زوره وهي او بهر یې ترې راباسي. په همدې ترتیب تر اخرې خانې پورې دوام ورکوي. که چېرې له اخرې خانې نه یې هم په یوه تیندک سره تر اولې خانې پورې چکله (موټۍ) مستقیماً راوویسته، نو دغه لوبغاړې بریالۍ بلل کېږي اوکه چېرې لوبغاړې چکله تر نظر لاندې خانې ته وا نه چوله یا یې پر خط باندې پښه کېښوده او یا یې چکله د پښې په وهلو د مستطیل له ښي یا چپ لور خط نه د باندې وویسته، نوبت یې سوځي.

**د متن لنډیز:**

د افغانستان په بېلابېلو ولایتونوکې بېلابېلې لوبې دود دي. دغه لوبې که له یوې خوا ساعت تېري ده، نو له بلې خوا بدني روزنه یا ورزش هم دی. لوبې یا بدني روزنه د انسان بدن پیاوړی کوي، زغم او حوصله یې زیاتوي او حافظه یې قوي کوي. انسان ټولنیز مخلوق دی او لوبې په انساني ټولنه کې د خپلمنځو اړیکو د پیاوړي کېدو لامل کېږي؛ نو لوبې هم له اخلاقي او هم له روغتیایي اړخه د انسان د ژوندانه اړتیا ده.




دغو پوښتنو ته دې ښلابښل زده کوونکي ځواب ووايي:

تاسو له کومو لوبو سره بلد یاست؟

تاسو په پسرلي کې کومې لوبې کوئ؟

د درې سیمه ییزو لوبو نومونه ووایاست!

هر یو د یوې ډله ییزې لوبې نوم ووایاست!

د خوسي په لوبه کې د هرې ډلې مشر څه نومېږي؟

د پورتني لوست لنډ مفهوم په خپلو الفاظو کې بیان کړئ.

د لاندېنیو لغتونو معناوې په بل کتار کې پیدا او د پنسل د کرښې په وسیله یې له اړوند لغت سره په خپلو کتابچو کې ونښلوئ:

| | |
|---|---|
| نړیوالې | رواج |
| سیمه ییزې | د ډلې مشر |
| میر | گټه، کمر |
| ډوبې | جهاني |
| تیره | محلي |
| دود | د خاورو کوچنۍ ډېرۍ |

- پورتنی لوست ولولئ، بیا پکې (ی) گانې په نښه کړئ او نومونه یې ورته ولیکئ!
- ښوونکی دې لاندېنی متن په لوړ غږ په دمه، دمه ولولي او زده کوونکي دې د املا په ډول په خپلو کتابچو کې ولیکي:

زموږ د هېواد په بېلابېلو سیمو کې بېلابېلې لوبې دود دي. ځینې لوبې نړیوالې نه وي، یوازې

د یوه هېواد په ځینوسیمو کې دود وي، هغه لوبې چې په سیمو کې  دود وي،  سیمه ییزې لوبې ورته وایي.

واليبال، فوټبال، کرکټ، هاکي، ټینس، پهلواني، څغاسته، لامبو، سوک وهنه، بایسکل ځغلونه او نورې نړیوالې لوبې دي. دغه لوبې څه ناڅه په ټولو هېوادو کې دود دي او ډېر مینه وال لري.

ـ زده کوونکي دې په وار سره د خپل کلي لوبې معرفي کړي.

ـ زده کوونکي دې په وار سره پر دې خبرې وکړي چې لوبې موږ ته څه ګټې لري.

ـ زده کوونکي دې د سیمه ییزو او نړیوالو لوبو نومونه په یوه پاڼه کې جلا جلا ولیکي او بیا دې د ټولګي په وړاندې ولولي.

ـ څو زده کوونکي دې د نورو په استازیتوب د لوبو په سیالۍ او د لوبو په آدابو خبرې وکړي، نور زده کوونکي دې خپلې پوښتنې طرح کړي.

## کورنۍ دنده

د خپلې سیمې د یوې لوبې د تر سره کېدو د ډول په اړه خپل معلومات ولیکئ او بله ورځ یې په ټولګي کې واوروئ.







# لاسي صنايع



زموږ د ورځنيو اړتياوو ډېر شيزونه اوس مهال په فابريکو کې په ماشينونو جوړېږي. پخوا چې ماشينونه اختراع شوي نه وو، ډېر اړين توکي به په ساده وسايلو په لاسو جوړېدل. تر اوسه لا زموږ په هېواد کې ماشيني صنعت دومره پرمختګ نه دی کړی؛ نو ډېر شيزونه لا اوس هم په هماغه ساده ډول په لاسونو جوړېږي. هغو شيزونو ته چې په لاسو جوړېږي، لاسي صنايع وايي.

- تاسو په خپله سيمه کې کوم لاسي صنايع پېژنئ؟
- غالۍ، لمڅي او ختين لوښي لاسي صنايع دي که نه؟

تر ماشیني صنایعو د لاسي صنایعو مخینه (سابقه) ډېره وړاندې ده. انسانانو لسګونه پېړۍ وړاندې د ورځني ژوندانه د اړتیا وړ زیاتره توکي په لاسو جوړول. د دغو توکو په جوړولو کې به له ډېر هنر څخه کار اخیستل کېده. د نړۍ ډېر موزیمونه په دغو لرغونو لاسي صنایعو ډک دي. د اوسنۍ پرمختللې نړۍ انسان د دغو څیزونو د جوړوونکو هنر ته هک پک پاتې دی.

د انسان له پیدایښت سره سم لاسي صنعت رواج شوی او ورو ورو یې پرمختګ کړی دی. لومړنیو انسانانو هم د ډېرو اومو توکو بڼه اړولې او د خپلې اړتیا وړ توکي یې ترې جوړ کړي دي. لاسي صنایع زموږ په هېواد کې هم خورا اوږد تاریخ لري.

د افغانستان په کلیو، بانډو او ښارونو کې یو شمېر ښځې او سړي، هلکان او نجونې له اومو توکو څخه پخپلو لاسو ځینې توکې جوړوي، لکه: غالۍ، ټغرې، لمڅي، شړۍ، خامتا، بنیانونه، جرابې، لاسپېلې(لاس کښې)، کړکۍ، کټونه، دروازې، مېزونه، ختین لوښي، څپلۍ، ښانکونه، څمڅۍ، ډونګرۍ، ټوکرۍ، ببوزي، راشپېلونه، ښاخۍ، یېوه، جغ او نور.

د افغانستان په لوېدیځو، شمالي او مرکزي سیمو کې مېږې او پسونه زیات روزل کېږي. له دغو څارویو ډېرې وړۍ ترلاسه کېږي؛ نو په همدغو سیمو کې غالۍ اوبدنه، ټغر، لمڅی او شړۍ جوړونه ډېره رواج ده. د افغانستان د ځینو شمالي سیمو غالۍ نړیوال شهرت او د خرڅلاو تود بازار لري.

په پکتیا، پکتیکا او خوست کې مزری ډېر پیدا کېږي چې شکرۍ، ټوکرۍ، خولۍ، ببوزي او بوڼ ترې جوړېږي.

په کندهار او هرات کې له ورېښمو څخه خورا ښکلي سکوی (خامک)، دسمالونه، لونګۍ او غاړې جوړوي. د کندهار، هلمند، زابل او غزني ځانګړې خولۍ په سیمه ییزه کچه زیات شهرت لري.

په کونړ او نورستان کې له لرګیو څخه ښکلې کړکۍ، دروازې، مېزونه، څوکۍ، کوچونه، الماری، کټونه او نور شیان جوړېږي. په کونړ او نورستان کې له وړیو څخه ګنډۍ، ګډین، ډیګره، شړۍ او پایتاوې هم جوړوي.

د پروان د استالف ختين لوښي په ټول افغانستان کې ډېر مشهور دي.

په ننګرهار کې د چرمو صنعت ډېر پرمختګ کړی دی. دغه د چرمو جامې د افغانستان په نورو سيمو کې ډېر مينه وال او پېرودونکي لري.

لاسي صنايع د يوه ولس او هېواد په اقتصاد کې ستر ارزښت او مهمه ونډه لري. زموږ ډېر هېوادوال خپل لاسي صنايع د خرڅلاو لپاره بازار ته وړاندې کوي. په پيسو يې د خپلې اړتيا وړ توکي پېري.

**څرګندونه**:

**ډونګرې**: لويه او اوږده څمڅمې چې له لرګي څخه جوړه شوې وي.

**ګنډې**: له وړيو څخه جوړه شوې بې جېبونو کورتۍ.

**ډېګره**: کورتۍ چې لستوڼي او ګريوان يې رنګه او ګلدار او تر ګنډۍ يو څه لنډه وي.

**پايتياوې**: وړينه پلنه پټۍ چې له پښو تاوېږي.

**د متن لنډيز**:

لاسي صنايع زموږ په هېواد کې خورا اوږده تاريخچه لري. لاسي صنايعو ته بايد وده ورکړو، ځکه لاسي صنايع زموږ د هېواد په اقتصادي وده کې ډېر ارزښت لري. لاسي صنايع پر اقتصادي ارزښت سربېره کلتوري ارزښت هم لري. لاسي صنايعو زموږ ډېرو هېوادوالو ته کار او بوختيا پيدا کړې ده. که لاسي صنايعو ته وده ورکړل شي؛ نو زموږ ډېرو هېوادوالو ته به بوختيا پيدا شي او له وزګارتيا څخه به خلاص شي.

## فعاليتونه

- د خپلې سيمې په لاسي صنايعو لنډې لنډې خبرې وکړئ.
- لاسي صنايع څه ارزښت لري؟
- زموږ د هېواد په کومه برخه کې غالۍ اوبدنه ډېر رواج لري؟

ـ د کومو ولایتونو د وړېښمو لاسي صنایع شهرت لري؟
ـ په افغانستان کې د کوم ځای د مزري لاسي صنایع مشهور دي؟ سم ځواب په نښه کړئ:

الف: کندهار

ب: بلخ

ج: پکتیا او پکتیکا

د: کابل

لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

د ................ د استالف ................ لوښي په افغانستان کې ډېر شهرت لري.

ـ په لوست کې پنځه ښځينه نومونه پیدا کړئ او په جملو کې يې وکاروئ.
ـ ښکلې کړکۍ، الماری، مېزونه، دروازې او لرګینې ځوکۍ چېرته جوړېږي؟ یوازې دوه نومونه چې سم دي په نښه کړئ:

الف- بغلان

ب- کونړ

ج- لوګر

د- نورستان

لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

ګنډۍ، ګلېین، ډېګره، شړۍ او پایتاوې په ............. او ............ کې جوړېږي.



## کورنۍ دنده

د خپلې سیمې د لاسي صنایعو په اړه لس کرښې مطلب ولیکئ.



پنځه ویشتم لوست

# څلوریزې




هر قوم او ولس خپله ادبي پانګه لري چې د نظمونو او نثرونو په بڼه موجود وي. ادبي پانګه د همغه ولس د ملي هویت ښکارندویي او استازیتوب کوي. په پښتو ژبه کې هم دغه پانګه په نظم او نثر دواړو کې ډېره موندل کېږي.

په پښتو ادب کې له دغو ادبي ډولونو څخه یو هم څلوریزې دي چې د شعر په بڼه ویل شوي او ډېر لرغونی تاریخ لري. څلوریزې چې رباعي هم ورته وایي، د ژوند د مختلفو اړخونو په اړه ویل شوې دي،په دې لوست کې به څلوریزې وپېژنو.

- تاسو څلوریزه پېژنئ چې څه ډول شعر دی؟
- تاسو د کوم شاعر څلوریزه لوستې او یا مو په یاد ده؟

څلوریزه یا رباعي هغه شعر ته وایي چې دوه بیتونه او څلور مسرې ولري. په رباعي کې د شعر لومړۍ ـ دویمه او څلورمه مسره په قافیه کې یو ډول وي. په دریمه مسره کې قافیه شرط نه ده، خو څلور واړه مسرې یې باید په وزن کې سره برابرې وي.

څلوریزه د شعر یو داسې ډول دی چې د هر راز مضمون لپاره مساعد او برابر دی. څنګه چې په څلوریزه کې یوه ډېره پراخه موضوع په لنډ ډول ځایېږي او مطلب پکې بشپړېږي، نو ځکه خو ډېره ځیرتیا او استاذي غواړي.

د مضمون او موضوع له پلوه په څلوریزو کې ټولنیزې موضوعګانې، د مینې مضمون، د پند او نصیحت اړخونه او نورې بېلا بېلې موضوعګانې راځي. دلته څو څلوریزې د بېلګې په توګه راوړو:

| | |
|---|---|
| فروتني کړئ سربلندانو | بهره یو نه وړه خود پسندانو |
| تل خمیده وي بارداره څانګې | تواضع خوی کړئ بهره مندانو |

کاظم خان شیدا

| | |
|---|---|
| تاکه ډېر دولت ټول کړی د جهان دی | عاقبت دې نتیجه واړه ارمان دی |
| بې کفنه به نور هیڅ څنې یو نه سې | هغه هم بېشکه نه، لا په ګومان دی |

اشرف خان هجري

| | |
|---|---|
| چې له حرامه سړی نفرت کا | خدای به یې ارت حلال نعمت کا |
| هومره به لوی مرتبې مومي | چې د نېکانو سره صحبت کا |

خوشحال خان خټک

یو چې ډېر خوري سوګندونه بل چې ډېر کاندي پورونه
اشنايي ورسره مه کړه دا بې پته وي خويونه

خوشحال خان بابا

که سپين او سره يې په کور کې تل وي چې نه يې علم نه يې عمل وي
ښادي يې نشته اخر به خوار شي بخت به تر کومه ورسره مل وي

عبدالقادر ختک

ځوانمرد هغه دی چې لکه شمع د ځان په سولو مجلس کا جمع
د بل لپاره که په خندا وي په مخ يې درومي باران د دمع

پير محمد کاکړ

د متن لنډيز:

څلوريزې د پښتو ادب د شعر هغه برخه ده چې دوه بيتونه لري. د څلوريزې لومړۍ، دويمه او څلورمه مسره په وزن او قافيه کې سره يو شان وي او دريمه مسره زياتره د قافيې تابع نه وي، خو داسې هم کېدای شي چې د څلوريزې څلور واړه مسرې هم قافيه وي او په وزن کې خو به خامخا سره برابرې وي. څلوريزه لوی او پراخ مفهوم په څلورو کرښو کې ځايوي. څلوريزې په عارفانه، عاشقانه، فلسفي، پند و نصيحت او نورو برخو کې ويل شوي دي او د نړۍ په ډېرو ژبو کې هم شته.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لوست د کتاب له مخې له ښوونکي وروسته په وار سره په لوړ غږ ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې درې ډلې شي. یوه ډله دې په متن کې نومونه، بله ډله دې فعلونه او درېمه ډله دې صفتونه راټول او خپلو ټولګیوالو ته یې دې څرګند کړي.

۳ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

۱ـ سوګند ۲ـ مل ۳ـ منقار ٤ـ بې پته ٥- تواضع ٦- بهره ۷- فروتني ۸- خمیره ۹- عاقبت

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره یوه، یوه څلوریزه ووایي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

٥ـ زده کوونکي دې په وار سره د څلوریزې په جوړښت او موضوع خبرې وکړي.

٦ـ زده کوونکي دې په وار سره په لاندې څلوریځې خبرې وکړي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

| | |
|---|---|
| یو چې ډېر خوري سوګندونه | بل چې ډېر کاندي پوروونه |
| اشنایي ورسره مه کړه | دا بې پته وي خویونه |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د کتاب څلوریزو ته ورته نورې څلوریزې په کور کې له کوم کتاب نه ولیکي او بله ورځ دې یې په ټولګي کې واوروي.





# گل پاچا الفت



په هره ټولنه کې ډول، ډول وګړي ژوند کوي. ځینې وګړي یوازې د ځان فکر کوي؛ خو یو شمېر داسې هم وي چې فکر او ژوند یې یوازې د ځان لپاره نه، بلکې د ټولنې او بشریت لپاره وي. دغه ډول وګړي تل د ټولنې پرمختګ، هوساینه او د بشریت رښتینې کامیابي غواړي. الفت هم د ټولنې او بشریت دغسې یو خواخوږی دی.

- د الفت په اړه مو په تېرو ټولګیو کې څه لوستي دي؟ خپل معلومات ووایاست.
- د الفت کتابونه مو که لیدلي وي، د څو کتابونو نومونه یې واخلئ.

گل پاچا الفت د میر سید پاچا زوی او د سید فقیر پاچا لمسی دی. الفت په (۱۲۸۸ل کال) کې د لغمان د عزیز خان کڅ په منصور کلي کې زېږېدلی دی.

گل پاچا الفت ښوونځی او پوهنځی نه دی لوستی؛ خو دیني زده کړې یې د سیمې له جیدو علماوو څخه کړې دي. صرف، نحو، منطق، تفسیر، معاني، بیان او احادیث یې لوستي دي. پر پښتو او دري سربېره یې په عربي هم لیکنې کولای شوې. الفت ژورې او پرله پسې مطالعې تر دې بریده رسولی و چې د ادبیاتو او حقوقو په پوهنځیو کې یې د استاد په توگه دنده درلوده. د نوموړي لوړ استعداد او سپېڅلي شخصیت هغه د پښتو ادب د پنځو ستورو په کتار کې ودراوه.

گل پاچا الفت ډېر متدین، پرهېزگار، د نېکو اخلاقو څښتن، زړه سواند، پر هېواد او هېواد والو مین انسان و. د څه کولو سپارښتنه به یې چې نورو ته کوله، هغه به یې په خپله هم کول. له څه چې به یې نور منع کول، هغه یې په خپله هم نه کول.

ډېر لوړ لیکوال، شاعر او نقاد و. شعر او نثر دواړه یې د ټولنې د اصلاح او سمون لپاره دي. لیکنې یې ډېرې جامع او عالمانه دي. د الفت ځپاند استعداد هغه ډېر ژر په افغاني ټولنه کې راوځلاوه. هغه بېلا بېلې دولتي دندې په صداقت او په ډېره ښه توگه ترسره کړې. د ښه کار او صداقت له امله په بېلابېلو وختونو کې په ځینو مهمو مډالونو او جایزو هم نازول شوی دی.

لومړۍ دولتي دنده یې په ۱۳۱٤لمریز کال کې په انیس اخبار کې پیل کړه. په دغه اخبار کې کاتب و. بیا د کابل د ادبي انجمن غړی او وروسته د پښتو ټولنې غړی شو. د پښتو ټولنې ریاست، په ننگرهار کې د قبایلو عمومي مدیریت، د ولسي جرگې غړیتوب، د پوهنتون استاذي او نورې بېلابېلې دندې یې اجرا کړې دي.

الفت ډېرو هېوادونو ته علمي او سیاسي سفرونه کړي دي. په ډېرو کورنیو او بهرنیو سمینارونو او کنفرانسونو کې یې کارنده ونډه اخیستې ده. الفت په لسگونو آثار لیکلي او ژباړلي دي، ځینې منظوم اثار یې دا دي:

د پسرلي نغمه،عالي افکار،د آزادۍ پیغام،غوره اشعار،د زړه وینا،ښه لمسون او نور.

د الفت په هر شعر کې د ټولنې هر وګړی د خپل زړه آواز او خپل ذوق مومي.

الفت د مور په اړه داسې وايي:

موري چې خدای له تا پیدا کړمه — ګران یې له هر چا نه په تا کړمه

له خپله ځانه لاخبرنه ومه — چې تاله ځان سره اشنا کړمه

په مینه، مینه به دې ماته کتل — د مینې کیف ته دې بینا کړمه

په ژبه پوه نه وم په مینه پوه شوم — پوه دې بې لفظه په معنا کړمه

ورو ورو دې راوستم خبرو باندې — راغلی ګونګ وم تا ګویا کړمه

پاک به دې کړمه چې خیرن به شوم — لکه ښیښه به دې صفا کړمه

خوب به دې نه و تر سحره پورې — چې لږ څه درد به په ژړا کړمه

که وطن چاڼ کړمه په مینې پسې — که لټ په لټ دغه دنیا کړمه

بې ریا خاصه پاکه مینه به ستا — کله په بل زړه کې پیدا کړمه

د محبت غېږ کې دې وروزلم — په عواطفو دې دانا کړمه

اشنا دې کړمه خوشحالیو سره — تا په موسکا تا په خندا کړمه

که وایم ستا غېږ کې جنت و زما — پوه شوی نه یم اشتباه کړمه

جنت خو ټیټ ستا له قدم لاندې دی — په اعلی حکم د ادنی کړمه

رب مې دی خدای او مربي مې ته یې — پیدا کم خدای تا توانا کړمه

و درولم تا پخپلو پښو — بیا دې بلد په ګرځېدا کړمه

څومره وړوکی ومه لوی دې کړمه — یوه قطره وم تا دریا کړمه

د وروروولی په رابطه باندې تا — د چا (روکی) د چا (لالا) کړمه

درس ته لېږلم تا په څه زاریو — په څه خواریو دې ملا کړمه

چې زلمی شومه هم دې پرېښودم — د بل دپاره دې (دادا) کړمه

تا سړی کړی یمه ګرانې مورې — د کار سړی که کړمه تا کړمه

ستا احسانونه بې حسابه دي — ستا کوم یو حق به زه ادا کړمه

نورو ته لوی تاته وړوکی ښه یم

ځان به وړوکی درته بیا کړمه

د الفت ځينې منثور آثار دادي:

بله ډيوه (هنري نثر)، نوی سبک او نوی ادب، غوره نثرونه، ژبنۍ څېړنې، لغوي څېړنه، څه ليک يا ليکپوهه، ليکوالي املا او انشاء، ادبي بحثونه، پښتو سندرې، ملي قهرمان، منطق او نور. د الفت هر نثر د لوړ پيغام درلودونکی، خورا خوږ، روان او د هر لوستي د پوهېدو وړ دي. هغه ډېر ځله په ډېر کوچني نثر کې ډېر لوی پيغام وړاندې کوي. دا د هغه د نثر يوه بېلګه ده:

## د مزار لوحه

((کور په کور او کلي په کلي به ګرځېدمه او دخدای په نامه به مې څه غوښتل، چا به يو موټی ناپاکه غله راکړه او چا به سوې ډوډۍ راکوله. ډېرو کورونو به څواب راکاوه او ځينو به په دروازه کې هم نه پرېښودم. څو ورځې د يوه او بل له درګاه نه بېنوا راغلم.

هېچا هيڅ رانه کړل، له ټولو خلکو نه مې زړه بد شو، دنيا ته مې په کرکه وکتل، خدای ته مې رجوع وکړه او په دغې کوټنۍ کې پرېوتم. هغه چې زه به يې په دروازه کې چا نه پرېښودم، اوس لاس په نامه ما ته ولاړ وي، له ما نه څه غواړي. زما په نامه زما کوټنۍ ته هر څه راوړي او د خدای په نامه خوارانو او غريبانو ته سوې مړۍ هم نه ورکوي.))

د هېواد او ولس دغه رښتيني خدمتګار د ۱۳۵۶ لمريز کال د ليندۍ پر ۲۸مه له دې نړۍ سترګې پټې کړې او د لغمان په عزيز خان کڅ کې په خپله پلرنۍ هديره کې د کابل ـ جلال آباد د لويې لارې تر څنګ خاورو ته وسپارل شو.

**د متن لنډيز:**

ګل پاچا الفت د مير سيد پاچا زوی او د سيد فقير پاچا لمسی دی. نوموړی په ۱۲۸۸ل. کال د لغمان ولايت په عزيز خان کڅ کې زېږېدلی. هغه ښوونځی او پوهنځی نه و لوستی، خو ديني زده کړې يې له جيدو ديني عالمانو څخه کړې وې. الفت صرف، نحو، منطق، تفسير، معاني، بيان او احاديث لوستي وو او په عربي ژبه هم ښه پوهېده.

ګل پاچا الفت يو متدين، پرهېزګار او د ښو اخلاقو خاوند و. الفت ژورې او پرله

پسې مطالعې تر دې بریده رسولی و چې د ادبیاتو او حقوقو په پوهنځیو کې یې د استاد په توګه دندې ترسره کړې وې. الفت د پښتو ژبې پوخ شاعر او ادیب و، د لوړ استعداد له مخې یې د پنځو ستورو په کتار کې ځای وموند. د هغه شاعري او لیکنې بې پرې او عالمانه وې، د هر چا خوښېدې. الفت په ورځپاڼو، مجلو او دفترونو کې دنده ترسره کړې ده او په پښتو ادب کې یې مهالونه ترلاسه کړي دي. هغه ډېرو بهرنیو هېوادونو ته سفرونه هم کړي دي. نوموړي په لسګونو آثار لیکلي او ژباړلي دي له هغه څخه زیات شمېر شعري او نثري اثار راپاتې دي. د هېواد دغه رښتیني خدمتګار د ۱۳۵٦ ل. کال د لیندۍ په ۲۸مه نېټه له دې نړۍ سترګې پټې کړې او د لغمان ولایت اړوند په عزیز خان کڅ کې خاورو ته وسپارل شو.



## فعالیتونه

- زده کوونکي دې شعر په وار سره ولولي او مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرګند کړي.
- لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:
  - الفت چېرته زېږېدلی دی؟
  - الفت لومړی ځل په کومه دولتي دنده وټاکل شو؟
  - الفت یوازې لیکوال و او که شاعر هم و؟
  - د الفت مزار چېرته دی؟

- لاندېني لغتونه په ځیر سره ولولئ، په دویم کتار کې یې معناوې درکړل شوې دي، تاسو هر لغت او د هغه معنا په خپلو کتابچو کې د کرښې په وسیله ونښلوئ.

| | |
|---|---|
| ځلېدل | وړه کوټه |
| ونډه | پرکېدل |

| بلهای | ډوډۍ |
|---|---|
| بله | شتمن |
| ډیوه | برخه |
| کوټنۍ | ځراغ |
| مړۍ | روښانه |

- زده کوونکي دې لاندې مفردې کلمې په جمع واړوي:

غړی، کرکه، ونهه، غریب، خوړ، موټی، هدیره، استاد، پښتو ټولنه، رښتینی، پرهېزګار.

- زده کوونکي دې د الفت د نثر نمونه په وار سره ولولي او بیا دې مقصد بیان کړي.

- ښاغلی ښوونکی دې د پورتني لوست یو پراګراف په لوړ غږ ولولي او زده کوونکي دې يې په کتابچوکې د املاء په توګه ولیکي.

ـ زده کوونکي دې د ګل پاچا الفت لاندې کتابونه د نظم او نثر له مخې سره بېل کړي.

| | |
|---|---|
| ـ د سپرلي نغمه | ـ ادبي بحثونه |
| ـ د زړه وینا | ـ بله ډیوه |
| نوی سبک او نوی ادب | ـ د ازادۍ پیغام |



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د مزار لوحه په غور ولولي او په دې اړه دې لس کرښې ولیکي، په بله ورځ دې په ټولګي کې واوروي.

# احمد شاه بابا



په ډېرو خلکو خپل کورونه جوړېږي؛ خو په یو شمېر کسانو خپل هېوادونه جوړېږي. ډېر شمېر ځان او کورنۍ ته خدمت کوي؛ خو لږ شمېر یې پرځان او کورنۍ سربېره د ټولنې او هېواد خدمت ته هم ملا تړي. همدغه مېړني وي چې بیا د بابا په لقبونو لمانځل کېږي.

- پوهېږئ چې د معاصر افغانستان بنسټ ایښودونکی څوک دی؟
- تر میرویس خان نیکه وروسته کوم افغان د هغه د ارمانونو د ترسره کېدو لپاره کار وکړ؟
- احمد شاه بابا کله د افغانستان د مشر (پاچا) په توګه وټاکل شو؟

احمدشاه بابا د محمد زمان خان زوی او د دولت خان سدوزي لمسی دی. په ۱۱۳۵هجري قمري کال په هرات کې زېږېدلی دی. پلار یې د هرات د افغاني قبیلو مشر و چې د احمدشاه بابا له زوکړې څو میاشتې وروسته مړ شو. د احمدشاه بابا پالنه د هغه مور (زرغونې انا) او د هغه ورور (ذوالفقارخان) وکړه. هغه په کوچنیوالي کې مروجه علوم زده کړل.

د کورنیو شخړو، بهرنیو لاسوهنو او یرغلونو له امله هغه مرکزي دولت له منځه لاړ چې میرویس نیکه یې بنسټ ایښی و. په دې ډول د افغانستان څه برخې یو ځل بیا د پردیو لاس ته ورغلې. د همدې شخړو له امله د احمدشاه باباکورنۍ لومړی فراه او بیا کندهار ته کډه وکړه.

له هراته تر کندهار پورې سیمې نادر افشار نیولې وې. احمد شاه بابا په زلمیتوب کې د نادر افشار په پوځ کې شامل شو. احمدشاه بابا د خپلې ځیرکۍ له امله ډېر ژر د افشار په لښکر کې دافغانانومشر وټاکل شو. نوموړی په ډېرو سفرونو کې له نادر افشار سره ملګری و.

کله چې د یوه داخلي اړ و دوړ په ترڅ کې نادر افشار ووژل شو؛ نو احمدشاه بابا د افغاني دود او غیرت له مخې د هغه کورنۍ د بلواګرو له ضرره وژغورله. د نادر افشار مېرمنې د دې خدمت په بدل کې احمد شاه بابا ته د (کوه نور) الماس ورویاښه.

د نادر افشار تر مړینې وروسته دې ته لاره هواره شوه چې د میرویس نیکه ارمانونه دې پوره او افغانان دې د خپلواک هېواد څښتنان شي. دې موخې ته د رسېدو لپاره افغانان د شېر سرخ په زیارت کې سره راټول شول. څو کسه د پاچاهي څوکۍ ته نومول شوي وو، احمد شاه بابا د پاچاهۍ څوکۍ ته نوماند (کاندید) هم نه و. د جرګه والو ترمنځ د پاچاهۍ په سر یو څه اختلافات وو. جرګې د پرېکړې لپاره یو روحاني شخص د منځګړي په توګه و ټاکه. له څو جرګو وروسته په پای

کې صابر شاه ملنګ د احمدشاه بابا د پاچا کېدو وړاندېز وکړ. په پای کې جرګې په اتفاق سره احمد خان د افغانستان د پاچا په توګه وټاکه.



احمدشاه بابا زړه سواند، مدبر او هوډمن انسان و. په سیاسي او پوځي چارو کې یې خورا ښه تجربه درلوده. هغه یو فرهنګپال او د افغان ولس په خوېښو او دودونو پوه امپراتور و. له ادب سره یې ډېره مینه درلوده. په خپله هم شاعر و، د پښتو شعرونو دېوان یې راپاتې دی. دغه دېوان څو ځله چاپ شوی دی. د احمد شاه بابا ځایناستی د هغه زوی (تېمور شاه) هم د پښتو او دري ژبې شاعر و.

د احمدشاه بابا په دربار کې ډېر شاعران روزل شوي او پالل شوي دي. د هغه د وخت ځینې شاعران دا دي: وکیل الدوله عبدالله خان پوپلزی، پیرمحمد کاکړ، حافظ ګل محمد مرغزی، محمدرفیق خان علیزی، میاشرف الکوزی، برهان او نور.

احمدشاه بابا په یوه غزل کې خپله هېوادنۍ مینه داسې انځوروي:

ستا د عشق له وینو ډک شول ځیګرونه | ستا په لاره کې بایلي زلمي سرونه
تا ته راشمه زړګی زما فارغ شي | بې له تا مې اندېښنې د زړه مارونه
که هر څو مې د دنیا ملکونه ډېر شي | زما به هېر نه شي دا ستا ښکلي باغونه
د ډهلي تخت هېرومه چې رایاد کړم | زما د ښکلې پښتونخوا دغرو سرونه
که تمامه دنیا یو خوا ته بل خوا یې | زما خوښ دي دغه ستا تش ډګرونه

احمدشاه به دغه ستا قدر هېر نه کا
که ونیسي د تمام جهان ملکونه

احمد شاه بابا په خپل ژوند کې ډېرې لوړې ژورې ولیدې، خو د یوه باتدبیره او ځیرک مشر په توګه یې د خپل هېواد جغرافیایي، سیاسي او ملي هویت ژوندی وساته.
نوموړی د هغې ناروغۍ له کبله چې ورپېښه شوه په (۱۱۶۸) هـ ق کال په کندهار کې وفات شو او په ډېر درناوي خاورو ته وسپارل شو.

احمد شاه بابا په خپل دربار کې عالمان او شاعران په ډېر عزت سره پالل. د پښتو ژبې نومیالی شاعر پیر محمد کاکړ د احمد شاه بابا د زوي شهزاده سلیمان استاد و چې په دربار کې یې ډېر درناوی کېده.

پیر محمد کاکړ د معرفت الافغاني په نامه د پښتو ژبې یو ګرامر تألیف کړ چې دا د پښتو ژبې د ګرامر لومړنی کتاب دی. د دې ترڅنګه د پیر محمد کاکړ د شعرونو دېوان هم شته چې څو ځلې چاپ شوی دی.

## د متن لنډیز:

احمد شاه بابا د معاصر افغانستان مدبر امپراتور و. که څه هم هغه یو تجربه کار پوځي و. خو د دې تر څنګ هغه یو فرهنګپال شخص هم و.د هغه په وخت کې افغانستان ډېر پراخ و؛ خو وروسته کورنیو شخړو او بهرنیو لاسوهنو ډېرې سیمې له دې هېواده بېلې کړې. موږ باید احمدشاه بابا د یوه فرهنګپال امپراتور په توګه وپېژنو. موږ باید د هغه درناوی وکړو او د ژوندانه د بېلابېلو اړخونو او کارنامو په اړه يې معلومات تر لاسه کړو.




- احمد شاه بابا کله او چېرته زېږېدلی دی؟
- د احمد شاه بابا د دربار مشهور شاعران څوک وو؟
- کوم روحاني شخص د احمد خان د پاچا کېدو وړاندیز وکړ؟
- د نادر افشار مېرمن احمد خان ته د څه په بدل کې د کوه نور الماس ورکړ؟
- د احمد شاه بابا د امپراتورۍ پلازمېنه کوم ښار و؟

په لاندېنیو کلمو کې عام او خاص نومونه سره جلا کړئ، بیا هر یو نوم په جمله کې وکاروئ:
سدوزی، مشر، احمدشاه بابا، دولت، لښکر، مېرویس خان، مېرمن، کوه نور الماس، شاعر، نازو انا.

- زده کوونکي دې په وار سره د احمد شاه بابا شعر په لوړ غږ ولولي او بیا دې معنا کړي.
- لاندې لغتونه او معناوې یې درکړل شوې دي، هره معنا د کرښې په وسیله له اړوند لغت سره په خپلو کتابچو کې ونښلوئ:

| | |
|---|---|
| ډګر | جنګ |
| راغ | مصمم |
| هوډمن | درېمګرۍ |
| منځګړی | فیصله |
| پرېکړه | میدان |
| شخړه | د غره لمن |

ـ د احمد شاه بابا د وخت او دربار د شاعرانو نومونه واخلئ.

املاء:

ښوونکی دې لاندینی متن په لوړ غږ ولولي او زده کوونکي دې په کتابچو کې ولیکي:

احمدشاه بابا زړه سواند، مدبر او هوډمن انسان و. هغه په سیاسي او پوځي چارو کې خورا ښه تجربه درلوده. هغه یو فرهنګپال او د افغان ولس په خویونو او دودونو پوه امپراتور و. له ادب سره یې ډېره مینه درلوده. په خپله شاعر و، د پښتو شعرونو دېوان یې راپاتې دی. دغه دېوان څو ځله چاپ شوی دی. د احمد شاه بابا ځایناستی د هغه زوی (تېمور شاه) هم د پښتو او دري ژبو شاعر و.



## کورني دنده

د احمد شاه بابا په اړه خپل معلومات په کتابچو کې ولیکئ او په راتلونکي درسي ساعت کې یې ټولګیوالو ته واوروئ.







# خبرې اترې (محاوره)



سابه او ترکاري د خوراکي توکو له ډلې څخه دي چې روغتیا ته زیاته ګټه رسوي. ډېر کورونه سابه او ترکاري په خپلو خوړوکې استعمالوي. ځینې اومې او ځینې یې پخې هم خوړل کیږي اومې یې تر خوړلو دمخه باید پاکې پریمنځل شي.

د سبزیو (سبو) او ترکاریو ډولونه په هره سیمه کې په بېلا بېلو موسمونو کې موندل کیږي او د کال په فصلونو پورې هم اړه لري. په ګرم موسم کې یې پیداوار زیات او په ساړه موسم کې یې پیداوار کم وي. دا دی دلته په دغه اړه یوه مرکه لولو.

- ستاسو په سیمه کې کوم ډول سابه او ترکاري پیداکیږي؟
- سبزي او ترکاري وجود ته څه ګټه لري؟

**لومړۍ مرکه**:

سرور: السلام علیکم کاکا!

دوکاندار: وعلیکم السلام، په خیر راغلې ستړی مه شې.

سرور: خدای دې وبښه خیر یوسې.

دوکاندار: څه دې پکار دي؟

— یو څه سبزي مې پکار ده

— وایه څه شی درکړم!

— کچالو من په څو دي؟

— په یو سلو لس افغانۍ

— دوه منه کچالو راکړه، د پیازو نرخ څنګه دی؟

— من په یو سلو شل افغانۍ.

— درې منه پیاز به هم وتلې!

— نور څه غواړې؟

— درې ګلپیان هم درسره را واخله!

— واړه که غټ؟

— واړه په څو دي او غټ یې په څو دي؟

— واړه په شل او غټ یې په دیرش دي.

— غټ یې را واخله!

— ټېپیر من په څو دي؟

— په پنځوس افغانۍ

— یو من ټېپیر هم وتله!

— نور څه درکړم؟

— اوس همدومره بس دي، پیسې یې وشمیره!

**دویمه مرکه**:

ګلالۍ: السلام علیکم کاکا جانه!

دوکاندار: وعلیکم السلام لورې ستړې مه شې.

ګلالۍ: خدای دې وبښه.

دوکاندار: څه دې پکار دي لورې؟

— یوڅه ترکاري مې پکار ده.

— څه شی غواړې؟

— دوه ګېډۍ شنه دنیا راکړه!

— نورڅه؟

- دوه ګېډۍ شنه (تازه) پیاز هم راکړه!
یوه ګېډۍ ګندنه (ګندنا) او یوڅه هوږه هم راکړه!
- نور وایه!
- یوه ګېډۍ پودینه هم را واخله، خو پام کوه چې شنه مرچ دې هېر نه شي!
- نور څه شی دې هم پکار دي؟
- تراتیزک شته؟
- هو!
- شپږ ګېډۍ تراتیزک هم راکړه!
- دادی تراتیزک مې هم را واخیستل نورڅه درکړم؟
- اوس همدومره بس دي.
دریمه مرکه:
اکبر: السلام علیکم!
میرویس: وعلیکم السلام، په خیر راغلې!
اکبر: خیر یوسې
- ماشاء الله، تاخو دکان له میوو ډک کړی دی.
- هو وروره! هغه څه چې په مارکیټ کې پیدا کیدل هغه مې راوړي دي.
- ښه نو زما هم یوڅه پکار دي.
- وایه څه شی درکړم؟
- مڼې او مالټې په څو دي؟
- مڼې چارک په پنځوس او مالټې چارک په څلوېښت افغانۍ دي.
- ښه نو، نیم من مڼې او یو چارک مالټې وتله!
- سمه ده نور څه غواړې؟
- انګور چارک په څو دي؟
- په شپېته افغانۍ.
- درې چارکه انګور هم درسره وتله!
- دادی انګور مې هم وتلل، نورڅه پکار دي؟
- شفتالو چارک په څو دي؟
- په پنځه پنځوس افغانۍ دي.
- ښه نو یو نیم چارک شفتالو هم وتله!
- نورڅه غواړې؟
- همدومره بس دی.
- پیسې یې جمع کړه چې څو روپۍ شوې؟

ــ ستا د سودا ټولې څلور سوه دوه نيمې افغانۍ شوې
ــ هه! دا د پنځه سوه روپيو نوټ واخله، خپلې ترې وګرځوه، نورې راکړه!
ــ دا دي ستا اووه نوي نيمې روپۍ پاتې شوې، دا واخله.
ــ کورډې ودان، زه درنه ځم، د خدای په امان.
ــ په مخه دې ښه.

**د متن لنډيز:**
ددې لپاره چې زده کوونکي په پښتو ژبه وغږېږي او په اسانۍ يې زده کړي، نو لازمه ده چې زده کوونکي په خپلو منځو کې خبرې اترې وکړي. خبرې اترې د يوې ژبې په زده کړه کې پوره اغېز لري. دا هم مهمه ده چې د خبرو اترو په وخت کې د يو بل غلطۍ سمې شي او که په کومه کلمه نه پوهېږئ له ښوونکي څخه يې وپوښتئ.



## فعاليتونه

١ــ زده کوونکي دې لوست يوځل په چوپه خوله له ښوونکي وروسته ولولي او بيادې په وار سره په لوړ اواز د نورو ملګرو په مخکې ولولي.
٢ــ زده کوونکي دې په دريو دوه کسيزو ډلو ووېشل شي او يوه يوه مرکه دې ولولي.
٣ــ زده کوونکي دې په لوست کې پنځه، پنځه نومځرى پيدا کړي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.
٤ــ لاندې تش ځايونه ډک کړئ!
• ګازرې ـ الوګان ـ ګلپيان او پياز د ................له ډلې څخه دي.
• منې ، مالټې او شفتالو په ................... کې شمېرل کيږي.
• مرچک (مرچ)، دنيا، ګندنا (ګندنه) د .............. له ډلې څخه دي.
٥ــ لاندې لغتونه معنا او په جملو کې يې وکاروئ!
١ــ سيمه ٢ــ موندل ٣ــ توکي ٤ــ موسم ٥ــ مارکېټ ٦ــ پودينه ٧ــ نرخ



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د وچو مېوو په اړه يوه مرکه وليکي چې لس کرښې وي بيا دې سبا ته خپلو ملګرو ته واوروي.

## وییپانګه

((الف))

اتڼچیان: اتڼ واله، اتڼ کوونکي
امسا: لکړه، کونټۍ، بینت، د لاس لرګی، عصا
امېل: هار، اوږده غاړکۍ، غاړکۍ
اندېښنه: غم، نول، وېره، خطره، سوچ، چرت، تشویش
اورښت: ورېدنه ، شیګره، وریا، باران یا واوره اورېدل
اوږی: د سپینو زرو ګاڼه چې غاړې ته اچول کېږي او ځانګړې جوړښت لري
اړ: کریاب، محتاج، احتیاجمند، ضرورتمند
اړتیا: کریابي، محتاجي، احتیاجي، ضرورتمندي
اړخ: څنګ، ډډه، پلو، لوری، خوا
اړین: د اړتیا وړ، ضروري، حتمي

((ب))

بایلل: بایلودل، له لاسه ورکول
بشپړ: پوره، کامل، تمام، ټول
بلواکي: ناخپلواکۍ، غلامي، د بل تر واک لاندې، پردی واکمني،
بلوسګر: تېری کوونکی، تجاوز کوونکی
بوختیا: مصروفیت، ناوزګارتیا
بوډا: زوړ، سپین ږیری،عمر خوړلی

((پ))

پالنه: ساتنه، روزنه، پالل، تربیه کول، لویونه
پرمختګ: پرمختیا، ترقي، وړاندې تګ
پرمختللی: مترقي، وړاندې تللی، رسېدلی
پرېټ: تمرین، رسم ګذشت، عسکري تعلیم قدم
پلازمېنه: مرکز، پایتخت
پلټنه: لټونه، راسپړنه، تفتیش
پوړ: منزل، طبقه
پیاوړی: ځواکمن، غښتلی، قوي
پړاو: منزل، رباط
پړه: ملامتیا، ګرمتیا
پېرل: اخیستل، رانیول
پېغله: بالغه نجلۍ، ناواده ځوانه نجلۍ

پېغور: طعنه

((ت))

تپوس: پوښتنه، حال احوال پوښتل، گروېږنه
تخلف: تېرى، سرغړونه، تجاوز، ناقانونه كړنه
تل: بېخ، ژوروالى، لاندې
تل: همېشه، مدام، هروخت
توغ: رېى، بېرغ، جنډه
توكي: عناصر، مواد
توښه: خورى، زېرمه، سفرخرڅ، جېب خرڅ

((ټ))

ټغر: گيلم
ټينگار: تاكيد، اصرار، ټينگېدل

((ج))

جوگه: وړ، لايق، مستحق
جيد: تكړه، لايق، نوميالى

((چ))

چاپېريال: شاوخوا، محيط

((ح))

حسرت: افسوس، ارمان

((خ))

خشخاش: كوكنار، د كوكنارو تخم
خلف: ځاى ناستى، اولاد، وروسته پاتې شونى
خوشامنگر: چاپړوس، چاپلوس، غوړه مال
خوځښت: حركت، نهضت، غورځنگ
خړوب: پېول، اوبونه، اوبه كول

((د))

څانښت: ټكنى غرمه، كچه غرمه
څپاند: څپې وهونكى، موج وهونكى،

مست

څرول: پوول، ورشو ته بیول.

څنگ: اړخ، پلو، لوری

څښاك: مشروبات، د څښلو څیزونه

څښتن: خاوند، صاحب

څېر: ورته، غونډې، ډول

څېرمه: څنگ ته، خواته، اړخ ته، نژدې

ځاله: جاله، آشیانه

ځپل: زهیرول، ټکول، وهل

ځواك: قدرت، قوت، انرژي

ځیرك: هوښیار، ذهین، تېزفکره.

ځیگر: ینه، جگر

دلربايي: زړه وړل، عاشقي، مینه

ډیل: ځنډ، ټال، درنگ

روزل: تربیه کول،پالل

روږدی: معتاد، اموخته

رټل: ترټل،گواښل، خپه کول،غندل

رېږدېدل: لړزېدل،لرزېدل، رپېدل، ړچېدل

زمولتیا: مړاویتوب، زمولتوب، زمولوالی

زهیرتیا: زهیروالی، کمزورتیا، زهیرتوب، بېځواکي

زهېر: کمزوری، ناتوانه، ضعیف

زوال: ځوړتیا، انحطاط

زیار: کوښښ، زحمت، هڅه

زړتیا: زوړوالی، سپین ږیرتوب، بوډاتوب

زړه سواند: زړه سواندی، لوراند، نرم زړه واله، رحم واله

زېږول: زوکړه، تولدول، پیدا کول

ژباړل: ترجمه کول، بلې ژبې ته اړول

ژغورنه: ساتنه، خلاصونه، نجات

ژوی: ساکښ، حیوان

سپما: زېرمه، بچت، ذخیره

سلسله: لړۍ

ستاینه: صفت،ښېگڼې بیانول

ستره: لویه، غټه

ستمی: تیگه، ساه نښتنه، د سترپا له امله ساه لنډه لنډه کېدنه

ستونزه: ربړه، مشکل

سکوی: چکن دوزي، خامك، گل کاري.

سمسور: ښیراز، زرغون، شین

سمڅ: لوی غار، غار

سوبه: بری، فتح، کامیابي

سوداگریز: تجارتي، د سوداگرۍ، د تجارت

سون: سونگ، سوځېدنه،احتراق

سوړه: کوچنی غار

سیالي: لوبه، مسابقه

سیلاني: گرځندوی،سیاح، سیل کوونکی

سرې: شش، پپوس، پړ پوس

شاباسی: افرین، د ستاینې او هڅونې کلمه

شپه روڼول: ، خوب نه کول، شپه په ویښه سبا کول

شتمنه: غني، د شتوواله، پانګه واله.

شخړې: ربړې، لانجې، جګړې.

ښارګوټی: کوچنی ښار

ښکېل: اخته، نښتی، راګیر

ښېرازه: سمسوره، زرغونه، شنه

غالی: قالین، قالینه

غچ: انتقام، کسات، بدل

غلی: چوپ، خاموش، آرام، کرار

غنایي: د غنا، د ښه اواز، د ښې غاړې، دارایي، غني توب، شتمني، ثروت

غوره: بهتر، ښه

غړی: عضو

کارنده: فعاله

کرغېړن: بدمرغه، بدبخت، ناولی

کرکه: نفرت، بدراتلل،بد ایسېدل

ککړ: لړلی، لت پت، ناولی، چټل

کمکی: کوچنی، وړوکی، ورکوټی

کنګل: یخ، یخک

کنړو: کوتل، غاښی

کوژده: په نامه کېدل، دسمال اخیستل، کوژدن

کوهی: څاه، چاه

کوټنی: کوچنی کوټه، کوټه ګی

کیڼ: چپ

کښل: لیکل، کاږل، ایستل

ګانده: راتلونکې، مستقبل

ګواښ: تهدید، تر فشار لاندې کول.

ګڼ: ډېر، زیات

لبیک: چمتوالی، تیاری، اماده ګي، هرکلی

لمسون:پارونه،لمسه، تحریکول

لړمون: د سنې، په قفس کې دننه غړي

لکه: زړه، ینه، تورې او نور.

ماڼی: قصر، بنګله

مرییتوب: غلامي، بنده ګي

معمار: ختګر - جوړوونکی

مکان: ځای، کور

مل: ملګری، انډیوال

مننه: شکریه، تشکر

منځګړی: درېمګړی، منصف، ثالث

منځنی: متوسط، وسطي، د منځ

مهال: وخت

مهلت: وخت،موقع، فرصت

موندل: پیداکول، ترلاسه کول.

مړل: مروړل، مېښل، سولول

ناڅاپه: نابېره، ناګهانه، سمدلاسه، یو دم

نس: ګېډه، خېټه، معده

نګوښېدل: په یوه پېښه ګوډېدل،بېکاره کېدل

لمانځنه: تجلیل، درناوی کول.

ننداړچیان: تماشه چیان، کتونکي، لېدونکي

نهیلي: نااميدي، تمه پرېکول، ناهیلي.

نومړی: مشهور، نامتو، نومیالی

نړیوال: جهاني

واکمني: پاچاهي، حاکمي، امارت

وزګارتیا: بې کاري، وزګار توب، مصروفیت نه درلودل.

ویجاړ: وران،ګډوډ، خراب شوی.

هرومرو: خامخا، حتمي

هک پک: حیران، وارخطا

هوساینه: ارامتیا، کراري، اسوده ګي

هوډمن: هوډیالی، مصمم، د کلکې ارادې څښتن



**اخځليکونه:**


۱.په افغانستان کې صنایع او په ملي اقتصاد کې د هغو ونډه، پوهنوال محمد بشیر دودیال، د اریک ګرځنده کتابتونو اداره، ۱۳۸۲هـ ش کال.

۲.اوسني لیکوال دريم ټوکه، عبدالرؤف بېنوا، دولتي مطبعه کابل ۱۳٤۰هـ ش، ۱۳٤۱ هـ ش، ۱۳٤٦ هـ ش کلونه.

۳.یاد فریاد (پښتو ــ دري اشعار)، سید شمس الدین مجروح، د افغانستان د مجاهدو لیکوالو ټولنه ــ پېښور ۱۹۸٥ کال.

٤.ګنج پښتو، مولوي احمد د تنګي.

۵.د پښتو ادبیاتو تاریخ اوسنۍ دوره، پوهاند ډاکټر زیورالدین زیور، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز ــ پېښور ۱۳۸٥ هـ ش کال.

٦.د رحمان بابا کلیات، حنیف خلیل، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸٤ هـ ش کال.

۷.د الفت مرغلرې، د شهرت ننګیال په زیار، دانش کتابخانه، پېښور دریم چاپ، ۱۳۷٥ هـ ش کال.

۸.لیکوالي (املاء او انشاء)، ګل پاچا الفت، پښتو ټولنه، ۱۳۳۹ هـ ش کال.

۹.زاهد پښتو ــ پښتو سیند، عبدالقیوم زاهد مشواڼی، دانش خپرندویه ټولنه.

۱۰.پټه خزانه، محمد هوتک بن داود، د پوهنې وزارت دوهم چاپ ۱۳۳۹ هـ ش کال.

۱۱.د پښتو ادبیاتو تاریخ، لرغوني او منځنۍ دوره، زلمی هېواد مل دانش خپرندویه ټولنه، لومړی ټوک، ۱۳۷۹ هـ ش کال.

۱۲.پښتو غږ پوهنه او ویي پوهنه، پوهنوال محمد صابر خېشکی، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه جرمني، ۱۳۸۰ هـ ش کال.

۱۳.څه لیکل یا لیکپوهه، ګل پاچا الفت، د اتحاد مشرقي مطبعه، جلال اباد ۱۳۲۸ هـ ش کال.

۱٤.اوبه او چاپېريال، پوهاند حسن يار.

۱۵.د بديع فن او پښتو شاعري، پوهنيار محمد ابراهيم همکار، رڼا مرکز، ۱۳۸٦ هـ ش کال.

۱٦.د ماشومانو ولسي لوبې، غلام جېلاني شبل، د اريک د گرځنده کتابتونو اداره، ۱۳۷۹ هـ ش کال.

۱۷.د حمزه کليات، د محمداصف صميم په اهتمام، د اطلاعاتو او کلتور وزارت، ۱۳۷۸ هـ.ش. کال.